# درشل

چــې پــر اغــزنو لارو ځو سبا ګلونو کې ځو
د عشق درشل تـه پـه سکروټو پـه اورونو کې ځو
شــپو کې د لمر زړې کرووریځې پـه ستوروولو
پــاتـی مــنــزل پــوری اشنا پـه سحرونو کې ځو
کــرېږ کــو ځــي کــه د سفر ځوله تبارو ډکې دي
دوینو ســور مشال پـه لاس کې تورتمو نو کې ځو
لــه زړونــو پــر خــپ اوروو پــر جل و هلی فصل
شیـبې، شیبې لکه وربمي مړاوو باغونو کې ځو
ودصــل لاره کــې رقــیــب خیر که کو هي کیندل
سبـا بـه غاړه غـړی یــاره ! مـنزلــونـوکـې ځـو

کابل

۱۳۶۷/۴/۳

# لوونه

ګډ شول هر خواته په کروندو لوونه
مـوږه کـــوو د خـپـل سرو لوونه
تـه دي ګلان دلـې دلـې وړه پـر سر
مـوږ تـه راپیښ دی د غو نچو لوونه
اوس پـه کـې کـيږي داغـزو لوونه
خـواشـيـنـې نه یو پر بی سرو تنو
مـګـر چـه نـه شې دشـملو لوونه
خـیردی که نور راکې څه پاتی نه دې
وطـنـــه !ځـاردرنـه دزړو لوونه

کابل

۱۳۷۶/۶/۳

# مات خوبونه

هيڅ نه پوهيږم ،

چې سبا به مې د ماتو ارمانونو

مړاوي شوي بڼ کې

د شنو اغزيو با چا هي

پر کوم ګل اور بلوي ؟

هره شيبه ، هره ګړۍ مې

د خوږو خوږو خوبونو

د ماتيدلو آوازونه اورم.

* * *

هره شيبه ، هره ګړۍ

له خپله ځانه تښتم

هره شيبه ، هره ګړۍ مې

څوک له ځانه شړي.

ديو ځنګله په څانګو ناست يم

یوه سیوري کې مې ځاله کړې

سیورې زما په هره ساکې

ځغلوي د خپلې سا تنستې ؛

زه ،

سیوری ،

ځانګې ،

لاس په لاس د تور ځنګله له با چا هی نه

د غریبې مهاجرې کورنۍ په خیر

په ګډه تښتو .

* * *

زه د مزل په هریو ګام کې

د پرون شاهدان وینم

او د نن شهیدان .

زه مې د غرونو او څیړیو

د ګونګۍ ژبې اورینو افسانو ته ناست یم

چې هره ورځ کې راته ښیي

پرخوني ټکو د وینو

او اورونو تاریخ .

* * *

زه یې په سترګو کې



سیندونه هم مري                    اسحاق ننګیال .

دخپل نن او پرون

ماتې هنداري وينم.

زه په زړو هديرو لولم

دنيکونو په لاسونو کې

دنن دزيږېدلو کيسې

.

کابل

۱۸ / ۶ / ۱۳۷۶

# کوټنۍ

نورمې تردې چت لاندې
خوب نه راځي
نور له ختېنو دېوالونو
او بامونو سترې شوې يمه
ماته له دې ځايه نه ليرې
په ځنګله کې
يوه دغوږګو کوټنۍ جوړه کړئ !

کابل

۱۳۶۷ / ۶ / ۲۴

# باور

منم دژمـي چـې اثـــر نـشتـــه دی
خو په سپرلي هـم څه باور نـشتـــه دی
ګودر به وي ، نجونـــې به ډیرې وي خـو
هغـــه دښکلیو مازیـــګـــر نشتـه دی
تـنهــــا که وم مــــګر اوبه چې نـه شوم
دآتـــشـــــي ستـــــرګو نظر نشـتـه دی
لـــویې دیـــــری چې مو اغزو ونیـــوې
جګې شملې پګړۍ پـــــه سر نشته دی.

کابل

۱۳۶۷ / ۶ / ۳۱

# د مسکو پېغلې ته

زه چې ګورم ستا د زلفو د مارپېچو غرونو باغ ته

ماته باد شي

زموږ د پېغلو وران پیکې ، ځنګل سرونه

زه چې ګورم ستا د شونډو د شرابو سره لښتي ته

ماته باد شي

پر وطن مې د سرو وینو ډک سیندونه

زه مې خپل او هم خو ستا بخت ته حیران یم

پر ما کاڼي وروي ، پر تا ګلونه.

مسکو

۱۳ اکتوبر ۱۹۸۸

# ستړې مورمې

هر څــو زيبښــمه ورو ورو ( د بلبل اوښکې )

هر څو زيبښم دوريښميــنو شونډو څاڅکي

هــــر څـو مــو ښم په سينې غوښنې پېغلي

هــر څـــو خـيـږم د نـشـــو پــر مـيـنارونو

لامي مينه تاوده نـــه وي چې رايـــاد شــي

دازخـــمـي ،زخـــمــي وطــن مـــې

هــر يــــو ګـوټ شــي د شـــرابـــو

پــيــمــا نـــــه راتــــه دزهــــرو

راتــــه يـــادې کــړي مـــچـــکې

د مـــــلـګــــروســـور تــــــر مــې.

!ای زمــــا ورانــــه وطـــــنــــه

ای د مــــــرګ او ويــنــوکــــوره !

لــږ مـــې پـــر بږده ، لـــږ مـــې پـر يـږده

چـې ميـلمـه يــم پـــس لـــه عـمره

ديــــــورپ د ښـــاپـــيـــريو .

کيف۱۹ اکـتـوبر ۱۹۸۸

زما زوی آرش ته :

# ستړي شعرونه

زه دې له لرې نه آواز اورم

زه دې له لرې ننداري کوم

چې لتهوې مې سرګردانه نا آشنا کوڅه کې

چې لتهوې مې د دې سترو میخانو غاړو کې.

خوزه

د شنوونو د لاندې له خپل سیوري سره

ښیبنه د غم د میو لاس کې

له هر ګوټ نه وروسته

د اورلګیدو د کوچنی لمبې رڼاوولاندې

ستړي شعرونه لیکم.

هو کې !

دوینو شعر ، دغم شعرونه

اوستا د ماتو مړ اوو شوبو آرمانونو غزل.

۱۳۶۷ / ۹ / ۵

# راشئ او وګورړئ !

راشئ او وګورئ !

زما دژوند دا « شنې شنې » اود « مستو » شاعر يو شپې

راشئ او وګورئ !

زما د غزلونو ميلاد اوكوچينوالي دغه تنګې كو څې

راشئ او وګورئ !

زما د شعر چغې مساپرمانبام کې

چې په سرو وينو لامبي

چې سترې ساندې بولي

چې تو تور تم کې د څو وچو اورلګيدو

دې كوچنۍ رڼاته

وينه شي، څاڅي او ژاړي سربداله دې کنې ځمکې ته.

* * *

راشئ او وګوري !

زما د مړو خوبونو د آسمان دانړېدلې ځاله

راشئ او وګورئ !

زما د غزل سترګو کې

ځپې، ځپې دوينو او سرو اوښکو چينې.

راشئ او وګورئ !

زما د شعر ګلونه پاڼې پاڼې

الماسي برېښنده غاښو کې د ځاڼو پاتې.

* * *

راشئ او ومې ګورئ

راشئ او ومې ګورئ

چې څنګه خلاص شم شو ګېرونه د سهار له شنو بادونو سره

وايم چې نه يې ليکم

خو پاڅم و خو ځم او ګرځم

لا هماسې له غمو ډکو شعرونو سره.

کابل

۱۰ / ۹/ ۱۳۶۷

# شومه دم

راځــه چې څه د ستورو دلالو نو شــومــه دم دی
په ځــنهو د سپوږمۍ کې د ګلونو شــومــه دم دی
کـیــسـې خو په والله چې د شــرابـــو زړې شوي
جـانانه د سرو شـونـډو د جـامونو شومه دم دی
د شـمـعـې پـه رڼـا کـې به مې ستا ښیره لیدله
اوس راشه چې مې کـور د مشالو نو شومه دم دی
خیالونه شول ښې ښې په شنه سین د آسمــان کې
تــه ګــوره چې آشنا !د غزلونو شـــومــــه دم دی
زمــا د انــتظــار شـبـې او ستا نیم کښه سترګې
زما د شوګیرو، ستا د خــو بــونـــو شـومه دم دی

کابل

۱۰/۶/ ۱۳۶۷

اجمل خټک ته:

# شمشاد شمله، زيړی خبری

ته رانه ځي اوزه تناکي پر ځـگـــر گـــر ځـــوم
دذهن باغ کي دې کرم ياد دي پر ســـر گـــر ځوم

اشنا ! درتلي نـشــمـــه لارتــولــه اغــزونيو لې
دزړه پر گل دي لـــکـــه پـــر خـــه هر سحر گر ځوم

څاڅکی غزل به مې لـــيــکه تا به تری جوړ کړ درياب
اوس به د شعر مـــنـــگـی خالي پر کوم گودر گرځوم

بـــــي شــــکـــه کـور د پښتنو کی لروبر خونشته
چـــی مې دزړه »دالان« نه ځې خاوري پر سر گر ځوم

ستـا دا شمشاد ، شمشاد شمله او ستا زيړې خبرې
لــکـــه روڼ ســتــوری په آسمان کي دخيبر گرځوم

گـــــوره زاري درتـــه کــوم چـــي درنه نشمه هير
ستا »دغيرت چيبغه« خـــوزه لـــرو بـــر گـــر ځوم

۱۳۴۷/۱۱/۳

# دخاورین کلي نا وې

ها غه ده وینم یې تر خاورو لاندې
یوه سپېڅلې څیره
اویو تنکی ماشوم
چې پوست په غېږه کې نیولې دی دځمکې ادې
تې ورکوي
اوله خاورین زړه نه یې ور کړلې
د تورو توروو ینو لپې

* * *

هاغه ده وینم یې تر خاورو لاندې
یوه رنګینه پاڼه
یوه نازکه لښته
چې شنه بادونه یې خاورین کلي ته ځي
اوورته ساورکوي
باران یې زلفې مینځي
اوشنې وږمې یې غوړته بولي

دښا ښست او دشنې مینې کیسې.

* * *

ها غه ده وینم یې تر خاورو لاندې

یوه د حسن ډیوه

یوه ښا یسته شهزادګۍ

یوه د شنو، سپینو او سرورنګونو ډکه

نازولې ناوې

* * *

ها غه ده وینمه یې

چې له خاورین کلي نه راغله

دښا یست پراوړو.

* * *

ګوره سپرلی راغې

هلته یو ګل وټو کید.

کابل ۱۳۶۷ کب

# فصل

دخزان رټلې ګل يم په سپېڅلي بهار سوځم
دګونګۍ شمعې رڼا يم دشپې زيږم سهار سوځم
ورته او ښکه شم د ستر ګوزما سترې سفر ګورئ
لاېې کوز پر شونډونه يم چې په ښکلي رخسار سوځم
دکمڅيو دبڼ ګل وم لکه روڼ دشفق څاڅکې
ستادتورو زلفو غره ته اوس تنها لکه خار سوځم
دليلې زړه کې شوې هيرې د مجنون ليونۍ ستر ګې
ټول لوزونه ځو انيمرګ شول دوعدو پر مزار سوځم
دوفا دانې مې کښت کړې دجفا فصل زرغون شو
دژړا چم خومې نه زده خودزړ په انګار سوځم

کابل

۱۳۶۸ ورى

# ښکاري نظر

زده کــه دې خـــوارېه نه دي تر خه خوارتــه ووايـــــه
مـات مات دې منګی شه جنۍ څه خوراتـــــه ووايــه
زه ســـاده پــه غـــورو دلـيــمـو کله پـــو هيــږمه
نــيــمــه راتـــه ووايــــه د زړه خـــوراتـــه ووايـه
نـــه وايـــمه نـه چې راته وکړه دوصال کـيســـــه
خــيــر دی يـــو غـــزل د بيلتانه خوراتــه ووايـــه
مـــا دې دالـــفــت زړې د زړه بـر ســـرکـــر لـــي دي
تـــه پـــر ې د ســپــر غو د بـارانــه خوراته ووايه
ستر ګي مي باولۍ شوې تاښکاري نظر ته کيــنا ستې
اوس يـــې هـــغـــه وخـــت د قتليده خوراته ووايه.

کابل

۱۸ /۱۳۶۸/۱

# زړه سوی پرغوټۍ

نازولې غوټـــۍ راغــله

د سپوږمۍ امیل پرغــاړه

د سپر لي وینې پرشونډو

اود ستورو د سرو اوښکو

په چپنو مینځلـې زلفــې

* * *

دا ډیری د سپینـــو واورو

د جــلګو سپیـــن کفنـــونه

یـــرغلـو نـــه د ږلیـــو

د بخجـنو بادو کړیکـــې

تو پانـــې خو نړۍ وریځې

د تــرخــو سیلـیـو ژبــــې

د ګلو نو د مــرګ چغــــــې

دویر جنـــو ورځو میــنــدې

سیــندونـه هم مــري

اســـــحـــــاق نـــګیـــــــــال.

د نیستۍ پر سین لاهو شول

راته سور پسرلی شین شــو

خو مې زړه پر غوټۍ سو ځي

* * *

زما زړه پر غوټۍ سوځي

چې د مرګ له پولې راغله

له لــو خړو ډک جهـــان ته

د شرابو جام پـــه لاس کې

خماري نـشې په سترګو،

خو شیبه پـــرې تیره نه ده

چې بې اوراو توپان سو ځي

د ثواب بنګړي پر لیچـــو

له ګنـــاه تشـــه لمنـــه

دازمو ږدوینو سـین کــې

دازموږ غریب سپرلي کي ! ! !

کابل

۱۳۶۷/۱/۲۴

# د بې لارو لارو پل

تاوې د رځم به

مامې زړه درته باغچه کړ

زما د مړه امید انګړ کې

د نرګس او زنبقو ګلان و غوړېدل

زما د ذهن د آسمان

د اجل وهلې دښتې

او وچې شوې چینې

لکه د شنه هسک کرونده کې

د سپوږمۍ

اورېږو ستورو د موسکا وو پټې

هاسې پر فصل راغلې.

* * *

ستا د راتلو د شیبو تال کې زنګېدم زنګېدم

ستا د راتلو هر قدم ته مې د شعر پیغلې مینځې کړلې

ستا هر قدم ته مې د شعر نازولې وینې و پاشلې

سیـــندونـــه هم مـــري     اســـــــحـــــاق نـــــګیــــــــال.

خو ته رانغلې.

خو ته رانغلې د شینکي باد د کمځیو

غورځیدلې غوټۍ

زما د بې ګله شملې ول ول کې تلپاتې شوله

او هر سحر راته په ذهن کې

دا ستا د قدمونو

د بې لارو لارو پل ښیي.

۱۳۶۸/۱/۲۹

کابل

# سیلۍ

توري سیلۍ دي به جونګړو کې رڼا نــــه پرېږدي

دلته دوینو لیوني چیرته خـــنــدا نـــه پرېږدي

چې د آشنا خــورو ورو زلـــفـــو کې نشته ګلان

ظالم وختونه د ســپرلي ستوني کې سا نه پر یږدي

پـــرون پـــه کـــانو نن چې داسې په سکروټو لګو

شـیــبې سلګۍ ته خو مو هیڅکله سبا نه پرېږدي

ویــنو کې زیږي ،پکې لوی شي ، پکې ومری بچي

قاتلې شپې دي د عا ګوی کور کې د چا نه پرېږدي

داســـې میلمه شو په وطن راته د مرګ ســــوداګر

چاته عزت ، چاته شمله، چاته حیا نه پـــریـــږ دي.

کابل

۱۵ /۱۳۶۸/۲

# د شهادت کیسې

چامې د مات ، زخمي زخمي

او مړ اوې شوي خوب تعبیر ونکړ

چې مې د اوښکو د ګلونو ننداري ته

د دې لرې وطنو نو له باغونو نه

د شا تو مچۍ ولې راځي ؟

* * *

چامې د زړه دوینو سین کې

وینې څښو نکي کبان و نه لیدل

چې یې د مستو خندا ګانو

او پیالو له کړ نګهار نه یې

دې لوی کلي او ټول وطن ته خوب نه ورځي.

* * *

چا د آسمان له چاودې زړه

زخمي سینې

او له ویر جنو ستر ګو ونه پوښتل

سیــندونــه هم مــري



اســـــــحــــــاق نــــــګیــــــــال.

چې د سپوږمۍ ناوې

دهسک دواټ په منځ کې

د شهیدو ستورو وینو نه

پر مخ ولې خالونه ایښي ؟

او شپو ته بولي

د آسمان د طلایې بڼ

د هر ګل او سرې غوټۍ

د زړه چاودون او شهادت کیسې

کابل

۱۳۶۸/۴/۱

# درې نومونه

زما د دښتو پوښتنه ولې کوې؟

زه مې د ژوند لپاره

درې نومونه ښکلي

اوله هر څه نه سپېځلي لرم

شعر

شراب

او د شنو ولو د شنو څانګو د غرمو سیورې.

کابل

۱۳۶۸/۴/۵

# ماضي پانه

د سـروینـو پـرون وینم
چـــې د نـــن شفق ته گورم
راتـــه تـــېـرې کیـسې ښیي
د مـاضي پــــانه آینه شوه.

* * *

چـې کـې لوی سمندر وینم
پــه یــاغي څپو کې لا مبم
دزمـان گـلـونـه میـنـــځم
د آزاد سـاحل پـه څـاڅکو
دنـجـات پـر بـېړۍ سوریم
کــلــه تــنــدر کله اوریم
ړنـگـوم د سـکـون څـلي
ویـښـېږم د مـاڼـو کـلی
هــر مـحل راته میوند دی
هـــره دښــتــه تاتره شوه.

*   *   *

چې کې لویو غروته ګورم

ټول جهان راته شمله شي

داکړې وړې درې مې

راته رزم شي، جګړه شي

هره تېره دوطن مې

د جرګولو یوه دېره شي

هره چغه د بابامې

پر »لاتیانو« زلزله شي

هر یو توغ، هره جنډه مې

د پرنګ پر سر لمبه شي

هره یېغله دوطن مې

ملالۍ شي، زرغونه شي

چې دامسته برېښنا وینم

راته توره شي تېره شي

د پرون غرورته ګورئ !

چې زموږد لاس وسله شوه.

*   *   *

لا دهسک څڼو کې زانګي

دا ا سمان اسمان خیبر مې

داد ننګ د کسو تور شو

داجهان جهان سپین غرمې

لاد فتحې سرود بولي

دامیوند میوند سنګر مې

دغازې ادې خنجر مې

لا د تورو ګوزار غواړي

د زلمي شهید ټټر مې

زړی !زیری !چې لاسره مو

دننګونو معرکه شوه

داپه سر ګټلې لاره

بیا زموږ په وینو سره شوه.

کابل

۷ / ۴/ ۱۳۶۸

# حاصل

بیا مو په کلیو، کروندو کې

د ماتم د ماښامونو ږمې و نخښدې

بیا مو د ژوند واټ

د سرو اوښکو د ماښام شفق

په وینو سور کړ.

او په دې سترږو مروندو کې

د غنمو او ګنیو د هر فصل پر ځای

هره شپه د ځوایمرګ ژوند

او د سرو وینو حاصل اخلو.

کابل ۲۶ / ۴ / ۱۳۶۸

# دا ستوري هم تويې شول

دا ستوري هم تويې شول

دا سبوږمۍ هم بوره شوه

او ددې شپو تورو ځنګلونو کې زېږېږي

او لويږي د شر مېښو

او ددښتو د بګوو بچي

* * *

دا ستوري هم تويې شول

دا رڼا هم مړه شوه

او د زړو کيږدېو منځ کې

د کوچنيو ماشومانو د خنداوو

او په غرو کې د زاړه شپونکي

د «های های» آوازونه ټپ شول

* * *

دا ستوري هم تويې شول

سبا به لمر هم مړ وي

او مونږ د شپو بنده ګان خاندو

درڼا وو د مرګونو

او شهيدو ښکلو ستورو ډلو ډلو جنازو پسې.

کابل ۱۳۶۸/۵/۲۴

# هغه ورځ...

بیا به سره لیچې درامېږلو
زموږ د کلي د ګلابو
له شینکي قده راتاو، راتاو شي؟
بیا به د سرې غوټۍ ډولۍ
د پسرلي پر مرمرینو اوږو
راشي زموږ د کلي باغ ته؟
بیا به د غرونو
دزاړه شپونکي په شونډو کې
د بېن زړه
زخمي اسوېلي ساواخلي؟
بیا به زموږ د کېږدۍ مخه
دوریو له سپېڅلو او معصومو آوازو ډکه شي؟

هوکې !

همداسې به شي

غرونه به هست شي

او دادښتې به

له دېرو ترانو سترې شي

خو هغه ورځ چې.

زما پر قبر

د پولادو شناختې هم ویلې وي.

۶۸ ۱۳ / ۷ / ۱۸

# كه سپوږمۍ نه وای...

كه سپوږمۍ نه وای

زموږ د شنه ښكلي آسمان كلي كې

زموږ د باغ خوږو انګوروبه

د چاله حسنه رنګ اخيسته؟

او د كوچيانو كاروانونوبه

پر كوم لوري مزلونه وهل؟

* * *

كه سپوږمۍ نه وای

زموږ دشنه ښكلي آسمان كلي كې

د مساپرو سلامونه به له لرې وطنونو

د آشنا ستركو ته چا رسول؟

اوزموږ كيږدۍ به

د تورتم له خونړيو لاسو چا ژغورلې؟

* * *

كه سپوږمۍ نه وای

زموږ د شنه ښکلي آسمان کلي کې

د شعر پېغلې به تنکيو آننګيو ته

د ميني خال له چا پوراوه؟

او دوختونو تروږمی کی به

دژوند او د اميد ګامونه چا اخيستل؟

کښت دې سمسور سپوږمی !

ژوند دې زرغون.

ځواني دې هسکه او ښېرازه اوسه !.

۱۳۶۸ / ۷ / ۲۴

کابل

# لمبې په دام کې

دلته غوټۍ له ډېرې تندې و سوې

دلته د باغ ډېوې شوې قتلې

داغزو پر خو نړېو لاسو

او لته ځمکه شوه د سُر بو

او اورونو پرغرمو بدله.

* * *

دلته په کلیو کروندو کې

د ماتم د ماښامونو ډمې ونخېدې

دلته دژوند واټ

د سرو اوښکو د ماښام شفق

په وینو سور کړ

او په دې سترېو کروندو کې

دغنمو او ګنیو د هر فصل په ځای

هر ه شېبه د ځوانیمرګ ژوند

او د سرو وینو حاصل اخلو.

*   *   *

دلته په سترګو کې

تنکۍ اوښکې هم و چې شولې

دلته سیندونه، ګودرونه

او وېالې ترې شول

«دلته ډوډۍ ورېږي ده».

*   *   *

دلته د شنه سپرلي دګلو دزېږدا

او شهادت نېټه راغبرګه شوله

او زمونږ په مېنو او جونګړو کې

خواره لوګي

زمونږ د ژوند د پای ټکي شول.

*   *   *

دلته وطن په وینو سور دی

او لګېادی زمونږ دوینو پر مدار خرخي

دلته زمونږ دا وښکو سین کې ملایک او شیطانان،

او پرښتې او تور دېوان سره په ګډه لامبي

دلته دغرونو غرور مات دی

او هر سین ته اتکړۍ دي پرتې

دلته دا ورلمبې په دام کې نیسي.

سیـــندونـــه هم مـــري                    اســــــحــــــاق نـــــګـيــــــــــال.

* * *

دلته اوبه، دلته اورونه، دلته خاوره

اوبادونه رانه غلو وړي دي

دلته د سترګو له ککیونه قی شوی

دشملو او لو پټو انځور

دلته زموږ د لاس تسبې لو د لولیو

او لغړ و فواحشو په غوږو کې زانګي

دلته وېالې تړې دي

« دلته ډوډۍ وړې ده».

۱۳۶۸ / ۷ / ۲

کابل

# ښېرې په مالت کې

جانانه ! دلته مه راځه لمبې دي پـه مـالـت کـې
زندۍ دي زولنې دي، غرغرې دي په مـالـت کـې
چې ته به لوبېدې پکې اوس هغـه ګـلان نـشتـه
ايرې دي په مالت کې، هديـرې دي په مالـت کـې
د مينې ګودر وران شو د منګـيـو کتـار مـات دی
له سرو وينو نه بيا جوړې وبالې دي په مـالـت کـې
سبا به وي منم خو په ماحـول کـې د کـوډګـرو ؛
په موږه خو خورې ورې تبارې دي په مـالـت کـې
ذزه هم ستړی نه شو پـرمـوږ زور د ستـمـګـرو
هر څو مره که ژړا وې دي ښېرې دي پـه مـالـت کـې
۱۴ / ۸ / ۱۳۶۸
کابل



سيـنـدونـه هم مـري اســحـاق نـګيـال.

# آس(۱)

هغلته لرې يو سپين اس ولاړ دى

لکه د ګلو پر خه

لکه د قو ښکه

لکه د ښکلي يار د سپينو غاښو سپينه برېښنا

لکه اوبو کې د ښا پسته وونبا پېرو د مړ ندونو سپوري.

* * *

هغلته لرې يو سپين آس ولاړ دى

لکه د ستورو اوښکه

لکه دتيو لې دنيا سپينه نازولې سپوږمۍ

ورپسې منډې وهم

چغې وهم

تښتي رانه

راځنې کرکه لري

فقط همداسې لکه ته چې رانه کر که لرې

منډې وهې

تښتې رانه.

هلته بو آس ولاړ دی

هلته بو اس ولاړدی

لکه د ګلو پر خه

لکه د قو بڼکه.

۱۳۶۸/۸/ ۱۵

کابل

# هیلۍ

پاڼې راورژیدې

څانګې بربنډې شولې

کفن د سپینو واورو واغوسته

دځمکې ادې

کنګل زموږه په ویالو کې

دابو له ستوني ساواخیسته

او ځوانیمرګ شول د سیندونو

نازولي کبان.

نوای هیلۍ خورې !

وزرونه پرانیزه ورځه

دغه ماحول

ګرانې !داستا داوسیدو کله دی ؟

کابل

۱۳۶۸ /۹/۲۲

# سلامونه

هلته چې شنه ښکلي بادونه

غوړوي په شنو ګنیو

د شنو پرخو امیل ،

هلته چې ولې دي

د جل په موسومونو کې

د سترېو پردیسیانو د غرمو څپرې

او د ویالو رڼې اوبه دي

د سپوږمۍ د پیغلتوب آئینې

آشنا ! هماغلته زموږ کلی دی

زموږ د ژوند هغه ویالې

او کروندی هلته دي.

ګوره ! که راغلې کله زموږ

د غه زاړه ، د غه کوچني کلي ته

ماته پلو کې

زموږ پټیو نه د تللیو

« قځلا خو » سلامونه راوړه !.

۸ / ۱۰ /۱۳۶۸

کابل

# غلا

نن مې مودو نه پس په سترګو کې

دخوب په ځنګله اور ولګید

خوسپین سهار رڼند شو.

نن مې دکور په دیوالونو کې ځنګیږي

دځوانۍ دزړه چاودون

او دګناه یو ویروونکی انځور.

کور مې لوټ شوی خوبه !

صدف په نارو باندې لوند دی

مرغلری ورنه غلو وړي دي:

زما دمور دلاسو نښې ها سپیڅلې تسبې

اوپه انګړ کې

دانګورو دتاکونو هغه ښکلې ، هغه مستې شنګلې.

۱۳۶۸ / ۱۰ / ۲۳

کابل

# ماڼو ته سرود

موږه دې وينو ماڼو !

موږه دې وينو ببرې !

ماڼو ! زموږه دلته ټو كودر آباد دى:

د زلميو او د پېغلو د تنكيو زوړ د وينو ګودر

دلته زموږ د وطن ميندې د كوډلو

او دورانو كلاګانو انګړونه

هر سهار په خپلو ستړو ستړو اوښكو مينځي.

* * *

زموږ بوختيا : وير سره غاړه غړې

زموږ ( مېلې ) پرهديرو ، ټوليدل

او ټنګ ټكور مو : د ګوليو نښا

ژوند مو داور اود ايرو

او د سكروټو او سپرغيو

يوه تكه سره بټۍ ده ماڼو !

مړي مو كور كې مسا پر

سيندونه هم مري

اسحاق ننګيال.

او د ځنګلونو او ددښتو د ناولو سرمښانو خوراک.

* * *

خو موږ دې وینو بیرې !

موږه دې وینو د توپان او ګردایونو په سرونو

د ګلونو او عمرونو لالهاندې بیرې !

موږه دې وینو د یاغې سین په موجونو کې

چې اوړې اورا اوړې

غورځې، پرځې

او خوځیږې

د ځپو پر غرونو لارې باسې.

* * *

موږه دې وینو ماښو !

موږه دې وینو چې ( سلام ) ته دې هر ګام کې

د وختونو لیونې پیریان

د شپو له ځنګلو نو وتې.

موږه دی وینو چې دې ښکارته

هر ځپک کې

د نهنګو وینې ځښونکې لښکر ناست دی

له غاښونو نه ارې جوړدې.

* * *

موږه دې وينو چې د درد کومې کې سا وباسې

موږه دې وينو چې يوه تنهاکه مړه نه وې بله درځې

موږه دې وينو چې د ژمي باد دې ژامو کې ډېره شوله

تاوه او راتاوه شوله.

* * *

خو موږ دې وينو ماښو !

چې هره ورځ او هره شپه، هره ګړۍ راته داستا

د سفرونو او مزلونو د ګامونو ښکالو

دلته راځي.

موږه دې سوز، موږ دې ګداز اورو

موږ دې په لاس کې دورغوي کرښې دلته لولو.

ماښو ورځه !

ماښو درومه ! سفر کم مزلونه لږ پاتې دي

د ستم زور اوبه دی.

* * *

که چېرته تم شې ماښو !

او د ساحل په لوري لارونکړې

د وخت پرپاڼو به وروستې شي تورتمونو کې

دستړېو قافلو ديون سپېڅلې کيسې

د ګلکځونو شنې ريښې به چېرته هم

دشنه ساحل پر آزادۍ باندې باور ونکړي.

* * *

موږه د مرګ او د ژوندون پر تم ځای ناست یو

ستا هر ګام ته مو له زړونونه

د وینو مشالونه ایښې

موږ دې هر ګام او هر قدم

د خپلو اوښکو په دې ماتو، تکو سپینو مرغلرومینځو

راته هادي شه مانو !

راته هادي شه مانو.

کابل

۱۰. ۱۱. ۱۳۶۸

# لاس راکوې او که نه ؟

بیا د اسمان دروازې بیرته شوې

باران دی چې وریږي پسې

خود سرو وینو باران.

څمکه شوه ټوله سر ترپایه پر چینو بدله

د سرو لمبو په چینو

دنیا مو ټوله په نا پایه سمندر واوښته.

* * *

« نوح » بیا دعا د مرګ

دوخت دګنا کارو کړې

موږ ګنا کار چیرته یو ؟

نه خو مو چاته لیونی ویلی

نه مو پیریان د چا دعقل غله ګڼلي چیرته

خو څو ډوبیږو بیګناه

د سرو اورونو د موجونو سیند کې.

* * *

ای د « جودي » پر غرونو ناستې

زموږ د « نوح » بېړۍ !

موږه په خپله لیوني یو

او پیریان رانه عقل وړی

لاس راکوی او که نه ؟.

۱۶ / ۱۱ / ۱۳۶۸

کابل

# موسم

بې له تا دوینو شپې شوې ، میلمنه مــو شـــه دکلـــــي
د « زیئوس » دکاله وړانګې « آتنه » موشـــه دکلـــي
څوچې غار په وینو لوند دی ، ګډوي لوګي دغــوبښـــــو
څو یو سترګی دیــو پاچا دی نو وسله مو شـــه دکلـــي
دتیارو اوښې ګونډه دي ژوند ترې سا ایستلې نــه شـــي
دسپوږمۍ دروح آینه شه او ډیوه مـــو شــــه دکلـــي
ورته یوې لولۍ سترګک کړ سکندر تخت د جمشید وسو
دامړ ژواندی قوم راویښ کړه زلــزلـه مــوشـــه دکلـــي
چې دژوند هره چینه یې تر هر پل لانـــدې کـــړه وچـــه
دادمرګ په سره موسم کې ته قبله مـــو شـــه دکلـــي .

۱۳۶۸ / ۱۱ / ۲۶

کابل

# زما لیلا

زما لیلا د شنو نارنجو د باغچو ونه ده
چې د سپرلي بادیې د ګلو دوړمو سپینو چینو کې
د خپل ټول ټول عمر مزلونه مینځي.

* * *

زمالیلا د شنه آسمان دلویو کلیو
د سپوږمۍ پیغله ده
چې تورو شپو کې ځانګه ځانګه شي
د دښتو او ځنګلونو تورو څپو ته
غونچې د مرغلرو اوبې.

* * *

زمالیلا د چنارونو او سپیدارو
ښایسته مرغۍ ده
چې چیرته ښاخ له ونې وزیږي
نغمې ورته د عشق او د پاکۍ غږوي.

* * *

زما لیلا دهسکو غرونو دسرونو

دکیږدۍ کوچۍ ده

لکه ګوربت یې پر ژورو او پرتږو

کږیدل نه دي زده.

* * *

زما لیلا دشنو بادونو دچینو

هغه رڼه سترګه ده

چې چیرته ګرد پر رڼا پریوځي

پرې وربمې دآزادۍ وورويِ.

* * *

زما لیلا دخدای دکلي دشنه باغ

دهسکې ونې سره مڼه ده آشنا !

چې دجنت وږي یو ازې دخپل حسن

او رنګونو په کاسو مړوي

او تو یولو ته یې لاس دقدرت هم نه رسي.

□ / ۱۱ / ۱۳۶۸

کابل

میرمنې ته مې :

# ستا وفا

مادې په زلفو کې

یو ګل د وفا کېښوده

تامې شملې ته

دخوانۍ شیبې

غونچې غونچې کړې...

# کیسې

سوړ ژمی اوبه شو د سپرلي هنګامې چیرته دي ؟

دا زموږ د تږیو هغه ډکې کاسې چیرته دي ؟

شپو کې لګیدلې د ظلمي شهید پر قبر چې

اوس مو پر شهید وطن دا ورکې ډیوې چیرته دي ؟

زموږه خو یادیږي د پردیسو هم بې وسه مرګ

سرې جنډې ریږیږي پرې ؛ زموږ هغه یرې چیرته دي؟

زموږ د ټینګ ټکور حجرې ، زموږ د محبت کلي

زموږ د شمله ورو هغه لویې دیرې چیرته دي ؟

شته دلو پټو غرور او هسک دی د پګړیو غر

اوف چې د پښتو او پښتونوالې کیسې چیرته دي ؟

کابل

# لکه سپیڅلی لوګوس

ته دزنبقو دتنکیو اننګیو

دشبنم څاڅکو کې

دانه دانه دپسرلي ښکالو کې وتو کېدې

لکه سپیڅلی « لوګوس»

لکه دوینې دزلمي شهید سوري ټټر کې.

ته دباران او سپینو واورو

له معصومې او سپیڅلې بیګناه لمنې

زماد زړه په جل وهلې دښتې تو یه شولې

لکه وږمه دسحر

لکه کوچنې ماشوم

دیوې بې وزلې مور دویر او ددعا په بدل.

ته دلمرونو دکانونو

او سپوږمۍ له څاه نه

لو یه ډیوه شوې

په تیارو شپو کې مې وځلیدې

لکه دړوند لاسو کې سترې امسا

لکه دتږي مسا پر په مخ کې لو یه چینه.

# ږلۍ

په دې پســــــرلي څــــه وشـــــول ؟

سپینـــــې وږمـــــې څــــه شــــوې؟

چې بې خزانه باد زموږه دباغـــچـــو ګلـــــونـــــه

سپیـــرو اغـــزوتـــه

لکه سترې با زینګر ګډوي

داپســـرلی څــــه شــــــو ؟

دازرکـــــې چـــیـــــرتـــــه لاړې ؟

چې زموږ دغرو په لاله یـــــې دروکـــې

اودبادونو دپستو سینو تر سیــــورو لانـــدې

دځوزو ډلې او دکاږو کاروان غیـــږې مـــوښـــــي

او دآسمان غیږه کې

شفــق راوســــوځیـــــد

پــــه شنــــو پـــانـــو یــــې

ځولۍ ، ځولۍ دسرو سکروټو ږلۍ وشـــینـــدلې.

# دا کلی مه ورانوئ !

دا کلی مه ورانوئ !
دا کلی مه ورانوئ !
ګورئ چې هلته د شنو ولو د شنو سیورو لاندې
ګورئ د شنې ویالې تر څنګه د جلګو د پاسه
یو کوچنی پروت دی
یو کوچنی ویده دی
او ، تر ورې لوپټې لاندې
په خوب ورو سترګو
د ناز په غېږه کې کوچنې شینکې خوبونه وینې.

دا کلی مه وارنوئ !
دا کلی مه ورانوئ !
ګورئ چې هلته لکه زرکې زمونږ د کلي نجونې
ګورئ چې هلته د بامو پر سر نورسې نجونې
کتار، کتار د لمر تر وړانګو خپل پیکې جوړوي
او په مینو ژبو
د پېغلتوب غوږ کې د ځوان هوس سندرې بولي.
دا کلی مه وارنوئ!
دا کلي مه ورانوئ!
ګورئ چې هلته د هغو سپېرو کوډلو ځینې
ګورئ چې هلته ددې تورې تروږمۍ له غېږې
ساړه زګېروي جګیږې
سوزمن آواز راځي
او امیدوارې میندې
د انتظار د بڼ د سرو ګلونو لارې څاري
دا کلی مه ورانوئ!
دا کلي مه ورانوئ!

# د سفر په لاره کې

مامې د مینې نو بالغه څرېکه ولیدله
چې مې د یاس او د همو نو د تیارو شپې یې
د خپلو سترګو د الماسو په تېغ څیرې کړلې.

* * *

مامې د مینې نو بالغه څرېکه ولیدله
چې د سرو وینو له بستر نه یې د ستورو نجونې
د شپو د زور له ګنهګارې غېږې خلاصې کړلې.

* * *

مامې د مینې نو بالغه څرېکه ولیدله
د سبا یې ددې وریښمینې وږمې سپورو لاندې
چې د آسمان د وریځو سینه سفر لاره کې
د باراني ګلو سلام ته غېږه دځمکې نیسې.

اهدأ زما سپین ږیري شهید پلار ته:

# د میلاد په شپو کې

ای ! ددې شنه اسمان په غیږه کې خوب وړې سپوږمۍ !

ای ! په دې شپو کې د پردیسو د سفر ډیوې !

ای ! د ګلونو او د پیغلو ، پیغلو وینو پري !

ته را ته ګورې ؟

ته را ته ګورې چې د کړیکو او تیارو ننبه شوم ؟

او د ساړه ژمي خوني او ګنهګار ابلیس

زما د ګلانو او نرګسو باغ کې اور وکاره !

تهرا ته ګورې ؟

ته را ته ګورې چې محل مې له کارغانو ډکشو ؟

او په ویالو د هیلیو بچي وسوزیدل !

او زموږ د کلي میندې

سیــندونــه هم مــري اســـــحــــاق نـــګیـــــــال.

دمیلاد شپو کې «بې لاسو او پښو بچیان زېږوي» !

ته راته ګورې؟

ته راته ګورې چې مې ټول کلی چاړه چاړه دی؟

خلک په نوکو او برچو دیوبل ستر ګې باسي !

اودمالت نجو نې

پ خپلو تورو ،توروڅڼو کې ځوزان ټک وهي؟

آه

آه نازولې سپږمۍ

آه درنې مورې !

# د چړې په څوکه

دا د سپرلي د شینکي باد وزرونه چا تړلي ؟
چې د سپوږمۍ شونډو کې تورو وریځو ځاله کړې
او د شیطانې شپې په لومو کې د ستو رو نجونې
د مرګ له نوکونه کترې ، مترې راتویږي شولې.

* * *

دا د سپرلي د شینکي باد وزرونه چا تړلي ؟
چې د تیارو په جهنم کې داغزیو لښکر
د بلا ربو بو ټو له شیدونه ډک تیونه شکوي
او د نرګسو داموسکۍ ، موسکۍ رنګینې سترګې
د لاس په نوکو باسي.

* * *

دا د سپرلي د شینکي باد وزرونه چاتړلي ؟
چې زموږ د کلي د بامو د سر سپینکۍ کوتې
د زهرجن غبار د زهرو د باران له لاسه
له ډیرې ویرې د ښکاري ګوتو کې ځاله کړې
او د چړې څوکه کې
سپینې دانې لټوي.

# درنها کلي ته

زه به د سترګو تخم

دغه رانه کسي

دوچې ځمکې په تبجنه غيږ کې وکرمه

او ،

د سينې له باغ نه

به مې دوينو څراغ

تورو کوڅو کې

دلارو يو مخ ته ،ونيسمه

څوچې په ګډه سره

دې لويو شپو کې

درنها کلي ته تول ورسو !.

# د شپې پر بام

نن مې د کور له پنجرې نه

د مغرب له لوري

يوې مرورلې

خوسا شوې ورېمې سرا خيستی

او د ګلانو په چوپتيا کې

د کارغانو ډلو

تياري پر سر

د سبا يي په شبنم ولامبلې

سحر له شرمه

ځان ته ونه کتل

ګلانو خپلې سرې مچکې پرې کړې

او لمر خولې ، خولې

د شپې پر بام ويده پاتې شو .

# د رڼا مرګ

لا د نرګسو د موسکا په سپرلني پاڼو کې

غرمو خوړلې،

جل وهلې کربلا ویده ده

د شپو په څنډو کې

د تورو ،تورو وریځو خمار

د سپوږمۍ زړه نه

د سرو وینو پیمانې اخلي

او اطلسي باغونه

د سرو ګلابو

د غوټیو جنازې پر اوږو

د پرهرونو

د باغچو داغي ګلونه پر سر

د تور خزان خوني سیلیو ته سلام کوي

او د سپیدو له باغ نه

د تورې د ښتې

پر اغزنې چاودې ، چاودې سینې

یوه رڼا ولویده

یوه رڼا مړه شوه    ( چې رنګ د لمر یې درلود ) .

پوهاند دوکتور زیار ته دهغه دپنځو سمې کليزې په منا سبت:

# ته لکه لمر...

ته لکه لمر

دخپلو وړانګو

طلايي لمبونه

ذره ، ذره

په مړاوو شوبو

( ګلو ) وڅخيدې

او ،

دشينکي ذهن

دهسک

له رڼو ستورونه دې

زموږ رڅيدلي

اوسرتور ( بڼ ) ته

سالو وګنډه.

# سپرلي ته

سپرلیه راشه پر دې کلي راشه

چې د ساړه ژمي قاتلو ،خونړیو شیبو

زموږ د باغ د کشما لیو وینې وچې ګړلې

او ما ښامي سیلیو

بیا د سپوږمۍ دزړه چاودون

دمړ و سلګیو شپو کې

د پېغلو ولو او سپېدارو ملاوې ماتې کړلې

* * *

سپر لیه راشه پردې کلي راشه !

چې زموږ د کلي د پېغلو ټو ګودر ونړېده

دلته دشو نډو په خیالي باغ کې موسکا مړه شوه

او زموږ د میندو مهربانو مورنۍ غېږو کې

شو نډې پر تیو داکو چني ماشو مان وسو ځېدل

* * *

سپر لیه راشه پردې کلي راشه !

چې تورو دربلو کې زموږ د سفرونو سپوږمۍ
درنو ستورو دګلونو دمیلاد په ماښام
کترې، کترې له اسماني دښتو راولوېدله
او دشنو ورږو دځوانۍ اوپېغلتوب خوبونه
دوحشي باد په قهر جن ستو ني کې ونښتل..

* * *

سپر لیه راشه پر دې کلي راشه
چې زموږ دپېغلو او تنکیو سرو غو ټیو ستر ګې
د ځانګو بڼ نه د خزان په سیلۍ تو يې شولې
دتوروشپو دتوروېځو تر لنې لاندې
دسرو رېدیو دمور بلار به ګېډه وځیرله!!!

# څا څکي...څا څکي

بيا ددې تور آسمان په غېږ کې

دوريځو ها دي

په تورو شپو کې

د سپوږمۍ په وينو ولمبيده

او اورني بادونه

د شنو پستو د پيغلتوب دوخت

شينکي خوبونه

تنکي ، تنکي سوځوي

او په دې شنو شنو دامان کې

دهوسيو بچي

او دزيتونو

دتنکي ذهن بې ژبې پاڼې

دخپلو وينو په بدل

څا څکي دلمر غواړي.

# پسرلی، ږلۍ، باران

سږکال به هیڅ کله سپر لی رانه شي

غوټۍ به چاته شنه موسکا ونکړي

ځکه داکلی ، داکورونه

اودا ورانې کوڅې

خپله سپرلی ، سپرلی دی

او راټوکیږي

هره ورځ پکې دښتي ګلونه

زموږ دوینو ګلان

زموږ دوینو غوټۍ.

سږکال به هیڅکله باران ونه وروي

ځمکه به هیڅکله محتاجه دآسمان نه شي

ځکه: هرګام او هرقدم

راته باران نیولې

یوه تریدلې باران

یوې تریدلې ږلۍ

داسې باران چې زموږ دپیغلو دښو له وریځو

له دې یتیمې ځمکې

آن په آسمان ووري.

استاد واصف باختري ته:

# لیک

ته یې سپیڅلی لکه ورانګه او اروا د مرغلرو

د صدفو د سپیڅلو رڼاګانو د ښکلا کعبه یې

ته یې سپیڅلی لکه روح د «آدم»

او د جنت د ښکلو حورو اننګیو او ککیو کې یو روڼ

دانــطـهـور ځاځکی.

* * *

زه دې په پاکو بېګناه سترګو کې وینم

د دنیا د بیګناهو او سپیڅلو اروګانو بې فریاده

یو ګنګ شوی، یو بې ژبې، یو بې وینې، بیګنا هه انځور.

زه دې د زړه په دې ناپایه سمندر کې هرساعت

هره شیبه د یوې یاغي بیړۍ د ستر ماڼو د ستړیو شیبو

لیکې وینم.

چې لا خوځیږي پسې، لاړې وهي، منډې وهې ځې او د آرمان غاړې ته نه رسیږي.

* * *

کله چې خاندې

ستا مالګينې خنداګانې ماته وير ، ماته فرياد

ماته فغان رابښي

ژړا دې نه پيژنم

کله چې ژاړې نه ژړلی نه خندلی شمه .

خو دومره پوی يم چې کاتب دمخلو قاتو زماوستا

دژوندون پاڼه دخپل « قار » او له « مستی »

ډکو شيبو ليکلې

چې ژړا نه پيژنو

خندا مو هم نه ده زده .

ته يې سپيڅلی لکه ورانګه او اروا دمر غلرو

دصدفو دسپيڅلو رڼاګانو دښکلا کعبه يې

ته يې سپيڅلی لکه روح د ( آدم ) .

۲۸/ ۱ / ۱۳۶۹

کابل

# سیوری ( ۱ )

داڅو ونې

داڅو ولــــې

داڅو څانگـــې

دازموږ دوطـــن نـــه دي

دوی نه بـــوی ځـــي د پـــــرديـــو .

* * *

دا سپڅلې خــاوره وايـي:

دوی زمادغيږی نه دي.

دادباد دمور آواز دی:

چې ماتی ورکړی نه دی.

دلمر وينې وهي کوکې:

چې دوی مالوی کړي نه دي.

* * *

کاڼي غرونه راته وايي

داسيندونه راته وايي:

پام چې څنگ له يې ورنه شې

يو ساعت شي درته سيوری

بل ساعت درنه سا اخلي.

۹ / ۲ / ۱۳۶۹ کابل



سيـندونـه هم مــري اســـــحـــــاق نــــگيـــــال.

# شناختې

یه ښکلې ، ښکلې

یه سپیځلې ملایکې !

دې مالت او په دې چم کې

ګنا هونه هومره ډیر دي

چې تا هیڅ

دخپل وبال او دګناه غاړه کې

ځوک نه وینې.

وایه ! په دې لار چې راتلې

هغه زموږه دپلرو

اودنیکو قبرونه څه رنګه وو ؟

نښه یې وه؟

خاوره یې وه؟

شناختې یې وې او که نه ؟

موږ خو دپلار او نیکه هغه سپیځلي

اودرانه قبر ته نه پریږدي ځوک.

۱۳۶۹ / ۲ / ۹

کابل

# ګامونه، قدمونه

سیلۍ ، دکومو اورنیو غروله څوکو دې

زموږ کلي ته لاره کړې؟

موږ چې قدم په قدم اخلو

ستا دغیږې داورونو پر سکروټو

او سپرغیو لګو.

چې دغنمو فصل شین شي

اود غوږ ګو نازولي بچي قد وباسي

ددنیا ټولې سرې لمبې مو میلمنې شي

دکبلو او کبانو دسپیڅلو خنداګانو

دمعصومو څپو وینې زبیښي.

* * *

سیلۍ !له کومې نا سپیڅلې اوبد بختې لارې راغلې

دګناه او دویرونو ساز پر شونډو

زموږ دژوند اوددعا او عبادت کلي ته ؟

موږ چې قدم پر قدم اخلو

هرقدم مو دکربوړو پر قدم اوپر پلونو لګي

قدم زګیروی کوي

ګامونه چیغې وهي

لارې له شرمه لارې نه راکوي.

* * *

سیلۍ ! قدم چې دلته اخلې باغ له شرمه

خپل ورمیږ غوځوي

موږ له غوټیو او غوټۍ له موږ مخونه نیسي.

وایه ته څوک یې ؟

د کوم ځای یې ؟

او له کومه دې زموږه ددعا او عبادتکلي ته پیښنه کړې؟

۱۳۶۹ / ۳/ ۱

کابل

# تو پیر

دادشنه آسمان ناوکۍ

څومره مینه ګرکې ده !

شپې چې دګناه شي

هر څو ځان پر خیرو ولړم

داراته موسکۍ شي

دخپل ځان په سپینو پیو مې څادر مینځي

دلته مې دځمکې

دا سپین سرې نیا میره شي

هرساعت راته قبلې

دشنو ډنډونو په اوبو ولي.

۱۳۶۹/ ۳/ ۹

کابل

# کلی

لښتي وچ شول

ويالې ورانې

سين د تورو کاڼو غر شو

اوس حيران يم چې د کلي

دا هېلۍ به چېرې لمبي؟

* * *

نه پوهيږم، نه پوهيږم

ای د کلي مازيګره!

هازموږ د کلي چم کې

هغه سپينه کيږدۍ څه شوه؟

هغه شنۍ څپرې څه شوې؟

هالو ګرې جنۍ چېرې؟

* * *

تا ته ياد شي مازيګره!

د ګودر د غاړې لېکې؟

لکه باغ د ښاپېريو،

لکه لارې د کوترو؟

* * *

تاته باد شی مازیگره !

هغه شنې د برې د کلې ؟

پکې هسک د شملو غرونه

پکې وربځې د چلمو ؟

* * *

نه، نه وران دی

کلی وران دی

بو ځاله پکې نشته

هاد ښکلو توتکیو

بو نغری هم آباد نه دی

د ابیو د لاس ننبه

* * *

لښتي وچ شول

وبالې ورانې

سین د تورو کانو غر شو

اوس حیران یم چې د کلي

دا هیلۍ به چیرته لامبي ! !.

۲۵ / ۳ / ۱۳۶۹

کابل

# چغه

وخت د دیدن اورشو د لمبــې پــر ســر ولاړیمـــه

څه وکړم پښتو ده دوعـــدې پــر ســر ولاړیمــه

څاڅکی څاڅکې راغلم ستا د حسن پربام پرېــوتــم

اوس چې پر ځان پوی شوم د ناو ې پر سرو لاړیمـــه

ته خو به تندی د شپې نن بیــا پــه کاســو وولـــې

زه خو مره کمبخت یم د توبې پــر ســر ولاړیمـــه

لږ خودې کاږه واږه بانه رابانـــدې سیـــورې کــړه

خیر دی مساپر یم د غرمـــې پــر ســر ولاړیمـــه

اوښکه د غزل مې د ساحـــل د غاړې چـغــه شـــوه

ډوبه مې ببرۍ ده د څــپــې پــر ســر ولاړ یــمــه.

۱۴ / ۴ / ۱۳۶۹

کابل

# د پښتو خبرې

ماته د انکار تاته د هو خــــبرې نـــــــه دي زده
تاته د راتلو ماته د تلــــو خبــــرې نــــه دي زده

ته خو به مانې د وعدو بيا راتــــه ودانـــــــه کړې
ماتــــــه لــــه دروغجـــنو د ګليو خبرې نـه دي زده

ستا خو به امېل لکه سپوږمۍ په تــټر وزانـــــګي
ماته د ناڅـــــيرو ګـــرېـــــوانو خبـرې نه دي زده

ته د خم مـــېلمه شه، سر تر پښو د مستۍ څانګه شه
مــــــاته بــــې لـه اوښکـــو د نشو خبرې نه دي زده

زه بې له پښتو نه په ټول ژوند پر بل څه پوى نه شوم
ستا لکه مــــغلــــه د پښـــتو خبـــرې نه دي زده

کابل

۱۳۴۹/۶/۳۱

# دوير مالت

ته راته خانده زه سلګو سره خوشاله يمه

ته پسرلی شه زه اغزو سره خوشاله يمه

دوير مالت کې دهوس دادا نشته قدر

دغم موسم دی له غمو سره خوشاله يمه

ستوري دې اوري پرخې پرخې پر خوب وړي نظر

زه لکه شمعه شوګيرو سره خوشاله يمه

دزلفو وريځې ورورو بلې دې نه شي ډيوې

دژمي شپه يم له تبارو سره خوشاله يمه

نا دان قاتل راته په لاره کې کرلي سپرغۍ

زه لکه دود لويو لمبو سره خوشاله يمه

ځومره خوږه شوه په دې چم کې دوحشت ارتقا

چې يې ښاغلو ليونو سره خوشاله يمه

۱۳۶۹/۹/۳۰

کابل

# پسرلی

پسرلی ، پسلی شو

پسرلي مې چې کري

ګلابي حورې

پسرلی مې چې دخدای

له مهربانو سترګووري.

* * *

پسرلی شو ، پسرلی شو

هره لويشته دوطن مې

دنرګس ډکه کمڅۍ شوه

هره لښته مې دکلي

تکه شنه دجنت ځانګه

غنمي وږمې په زلفو

غرنۍ کوترې راغلې

دهوسيو لونې ناځې

دشنو دښتو پيغلتوب ته.

* * *

پسلی شو ، پسرلی شو

دلمر سرې تورې يې ښکل کړې

لمبوي درنا ناوې

غوځوي دشپې رګونه

کړي دښتو دآسمان کې

دانځرو شنه با غونه

سپوږمۍ سپين رباب اخيستې

رانه ستوري نڅاګر شول.

* * *

پسرلی شو ، پسرلی شو

تودوي مې سرې وينې

زور خمار پر عقل ولم

سد مې اخلي دتاک وينې

ګناه کار ساقي ته ناست يم

راکوي جنتي « پينې »

هره پاڼه دهرګل مې

دې ياغي سر ته پګړۍ شوه

هريو کاڼې مې ګلاب شو

هره پرخه مې غونۍ شوه.

۲۱ / ۱۲ / ۱۳۶۹

کابل

# کلیزه

نن مې د ښکلې لور د حسن پر سپرلیو

یو بل ګل وټو کید

نن یې د ژوند پنځلسم ستوری رابرشو

د کمخو پر ماښام

نن یې د تاند عمر د لښني پېغلتوب ته

بل ګهیځ شین شو له.

لورمې نن پیغله شو له

* * *

نن مې وعده وه چې د زړه دو چې د ښتې

د سمسورې غوټۍ جشن لما نځم

نن مې وعده وه چې به ناوې کړم

د کور پنځلسمه سپوږمۍ

نن مې وعده وه چې سلګۍ ورته

د شمعو دودوم

او بلومه ډېوې

خو نن د خپلې بد نصیبې سرې غوټۍ

مو سکا ته کېنا ستم

ما یې د باغ د پېغلتوب

ددې تنکۍ شېبې سلام وانه خيست

ما شمعې ونه شوای راوړای

ورکې ډېوې بلې نه شوې

ما يې ترخو شونډو ته

رنګ د خوږو هم ورنکړ

ما يې پر زلفو يو کو چنی پوړنی

نه کړو راخور.

* * *

او نن ماښام چې ټوله ورځ

روژه په خوله

دلوی الله پر عبادت بوخته وه

په دې ګناه چې

په نغري کې

ماښامي ټېپر تر وسوځېدل

موريې له شپې نه

تر سبا ورته غمبوري

په څپېړو شنه کړل.

هو !

موږ د بچو کليزې داسې لمانځو

زموږ د ستور داسې دی !!!

۲۶ / ۱۲ / ۱۳۶۹



سيندونه هم مري — اسحاق ننګيال.

# عبدالباري جهاني ته (۱)

دهغه دشعر په ځواب کې:

مساپر خيالونه راغلل

مساپر له لرې غرونو

مساپر له لوی سفرنه

يادوي «دماضي پاڼه»

رانه پوښتي دنن وينې.

* * *

اوس به څنګه ورته وايم ؟

اوس به څنګه ورکړم «زيری»؟

چې به ستړيه مساپره !

هره ولويشته ددې کلي

چې دخدای (ج) له خوبه شنه وه

اوس يوازې دکارغانو

او زاړه شيطان کيږدی ده.

* * *

اوس به څنګه ورته وايم ؟

چې دغرونو ځنګل لوټ شو

دڅیرېیو څنې پرې دي

ځالې ډکې له کربوړو

دچنارو په سینه کې.

* * *

اوس به څنګه ورته وايم؟

چې دنن مینزو کړې ماتې

دپرون ښکلې هنداري

زموږ بوډې مور یې کړه بوره

ټول وطن شهید شهید شو

دلته مري دماضي فصل

دلته مري دسبا زړي

شمله ور غرونه مات شوي

راميراتې لوپټې دي.

* * *

اوس به څنګه ورته وايم؟

چې مې مري دمستۍ کلی

دلته وير دی خندا نشته

دمرکي لوبه جاري ده

چا خندا راته وژلې

چا مو کور پر انګار وویشت



سیـــندونـه هم مـــري

اســـــحــــــاق نــــــګيــــــــال.

چامو پڅو چړو باندې

دبچیو مرۍ پرې کړې.

* * *

اوس به څنګه ورته وایم؟

چې دنجونو تور وربل کې

سپرلې شین شو دځو زانو

دلته اوس دګودر لاره

داغزو لښکر نیولې

اوس دښکلو دسرو شونډو

هغه شنې موسکاوې مړې دي

اوس دښکلي ریبار ژبه

داغیار پر نوکو وتې

دلته لویې دیرې نشته

دحجرو تغر تول شوی.

* * *

اوس به څنګه ورته وایم؟

چې شهید پلو پر سترګو

دوطن ادکۍ ژاړي

رنګوي ددعا څلي

هسکوي دښیرو غرونه

«زور» له لوړ ګریوانه نیسي

د سرو اوښکو په لاسونو

ترینه غواړي د خپل فصل

د دې شنو دانو مرګونه

چې نامردو بزغلیو کې

د مور څه قدر نشته.

* * *

ته دې ورک سیوري ته ژاړې

زه له خپل سیوري نه ستړی

ته له ځان سره په جنګ یې

زه فلک سره په جنګ یم

راته وایي:

ژمې درومي

توتکې به بیرته راشي

لکه وړانګې د سپرلیو

په وریښمین وریښمین وزرونو.

* * *

زه ویم:

ای د ټولو ربه !

که ته چیرې توتکۍ وای

او دریا دې وای دا ورځې

ته راتلې زموږ پر کلي؟

لکه وړانګه د سپرلیو

په وریښمین وریښمین وزرونو ؟.

۱ / ۱ /۱۳۷۰

کابل

# تاک

چې یې دنیا ته سترګې راکړې

او غونچې غونچې شوې

پرهغه ورځ مې د مور سرې سترګې غوټۍ شوې

بیرته ونه غوړېدې

چامې پر تړیو او ماشوموشونډو تې کې نه ښود.

پرهغه ورځ هم دلمر سرې وینې شوې وچې

او یوه شیبه راونه وریدې

شپه شوه ، شپونکۍ ، سپوږمۍ د ستورو درمو

وړیو وریو پسې هم ونه وتله

تمامه شپه د مړو سلګیو پرزانګو ویده شوم.

* * *

سهار چې پا خیدم

زموږ ه د کاله د سرو انګورو نرۍ ونې راته ایښې وه

غو لانځه پر سپیرو او جل وهلیو شونډو

ماورته مور وویل.

اوس هغه څاڅکي دانګورو مې پرزړه باندې

نیالګي ولاړ دی

څوچې لویېږم ښاخور تاک مې

له ژوند سره سم لویېږي

زه او تاک دواړه له یوې ریښې یو.

۱۰ / ۳ / ۱۳۷۰

کابل

# دلبرې

هر څو مره چې پې مخې دي او ښکلې دي د لبــرې

هــغــومــره ستمــګرې او قاتلې دي د لبـــرې

پو هېږم څو خو نخوره مېلمنــې وې درنــه لاړې

زړګـــيـــه !خپـه نـــه شې نازولـــې دي د لبـــرې

نه لوز، نه يې و عده، نه يې رښتيا ده چا ليـد لې

دې چم کې دوفا له غرو لـويدلـــې دي د لبـــرې

زموږ که څواني اورشوه ددوی ګل له څنو پريـوت

داهسې پر خپل حـــسن غولېـــدلـــې دي د لبـــرې

توبه !الکه د خوار فقير دې خپلـــې غوسې وسوم

درنې دي، پښتنې دي او ښـــا غلـــې دي د لبـــرې.

۲۹ / ۳ / ۱۳۷۰

کابل

# آزادي

دلته څوک نور د سپرليو

د ګلونو او وږمو په سوچ کې نه دي

دلته چاته نور زموږ د کورونو

د بامو سپينو کوترو ته

دانې ورکول نه زده.

* * *

دلته د ښتو کې د باد له کوچې هير دي

چې بيا ښکل کړي

په پرديسو وچو شونډو

د لو ګرې پېغلې خنې

دلته پر کاله نشته

چې د استړې توتکۍ پکې دمه شي.

* * *

دلته وينه ،مينه مړه ده

دلته فصل د لمر وچ شو

دلته قتلې دي د عشق او د ځوانۍ

او پېغلتوب د دې سپيڅلو ګناهونو

د جنت ښکلې هنداري.

* * *

دلته سا په باغ کې نشته

دلته مات د ګل انځور دی

دلته بڼ کې زرغون شوې

د ساراوو دزړو بګوو چيغې.

* * *

مور د مرګ کام کې ژوندي يو

د ښکاري ګوتو کې ناڅو

د سبا کښت يې رالوټ کړ

دادنن شيبو ديوانو

د پرون پاڼې وروستې شولې

د مړو اود خاپو په لاسونو.

آزادي خووي همداسې

ژوند خو داسې وي کنه !؟

۱۳۷۰ / ۵ / ۲۴

کابل

# څو منثور شعرونه

مصطفی جهاد ته :

## زموږ مړینه -۱-

پرېږده ،

آرام ویده شه !

زموږ مړینه داسې ده

لکه زوکړه مو چې وه

او زوکړه مو

لکه مړینه مو چې ده.

* * *

پرېږده !

هغوی چې د خپلو کورونو

پر د ستر خوانونو

ډوډۍ خوند نه ورته ورکوي

ژوندي وي.

پر بږده !

هغوی چې د پر دېو د کابارو

دافینو او الکولو په چینو کې

د لغړو فوا حشو

د پستو او مر مرینو غولانځو پر غرونه

ښوه شپېه خوب

زموږ د ټېولو په ژوند نه ورکوي

ژوندي وي.

او پر ښږده !

هغوی چې و ښاړګنې

د خپلو ناوو پغلتوب

له هغوی نه

په پردیو کتېونو کې واخلي

ژوندي وي.

او،

زه اوته

چې ژوندي وو مړه وو،

نو،

پرښو ځه

آرام ویده شه !

لکه زوکړه موچې وه

او زوکړه مو

لکه مړینه موچې د ه. ۱۳۷۰ /۵/ ۳۰ کابل

# درد -۲-

دپلار مړینه مې ولیده

او دورو نو زړه چاودون هم

لوږې مې ډیرې وزغملې

او تندې هم

خو بوه یې دومره دردوونکې نه وه

لکه:

نشه چې نه وي پوره

او نبیبنه پای ته ورسې.

۱۳۷/۶/۱۷

کابل

## پیغمبران هم ژاړي -۳-

ونې ! ولې ژاړې ؟

ښا خونه یې راته غوڅ کړل.

چا ؟

ښاخ مې ،

و مې روزه، و مې روزه

چې رالوی شو

تبر ته لاستی شو .

* * *

- مورې ! چېر ته ځې ؟

-د خدای کلي ته.

-مګر دالویه نړۍ ؟

-نړۍ خو دد ېوانو ده .

- مېړه دې شته ؟

- رانه ورک شو .

- اوزامن؟

- لرم یې: قابیل او هابیل.

* * *

- مسیحه ! ته او او ښکې ؟

-اوښکې نه ، وینې.

- دیهودا له لا سه.

ومې روزه، ومې روزه

چې رالوی شو

دښمن ته یې و سپارلم.

* * *

- وطنه ! ته؟

- اودادی زه هم ژاړم.

- څوک دې ژړوي؟

- ملت مې،

ملت مې دوه برخې شو :

- قاتل او مقتول

دریمیګړی نه لري.

۱۸ / ۱۳۷۱/۳

کابل

## برخه ـ۴ـ

هغه ورځ مې چې غو ښتل

کمځی یې ورته له ګلو نو ډکې کړم

دد ښتو او بڼو نو ګلان

سیلیو بوو وړل

او نن چې، ګلان بیا راوغوړېدل

هغه نشته..

* * *

هو کې !

زموږ برخه همداسې ده

تېر کال مو چې وبالې

له او بو ډکې وې

زموږ د کلي ژرنده ورانه وه

او اوس چې

د کلي ژرنده بیا ودانه ده

په ویالو کې اوبه نشته.

۱۲/ ۶ / ۱۳۷۰

کابل

# دنیا

زما زړه تر جهان لوی دی دجهان تنـــګـــه سینـــــه ده

چي زه نه پکې ځائـــیــږم دادنیا ځـــومـــره وړه ده ؟

زه دجـــل دغـــرونـــو تـــرې پـــر وا ګیـــر نه یم دلپو

ســـاقـــي ! چـم مـــې دګوټ نه زده زما بحر پیمانه ده

ما مسیح حیران لیدلی دخپل مورد عفت ســـوال تـــه

ماچي نوم دعشق اخیستی راته لـښتـــه زمـــانـــه ده

موږ ئې ځنګ ته دګودر ناست یو پو کوو پکې ساګانې

ګنې داد ژوند ډیوه خـــو لا پخـــوا تـــر ازل مـــړه ده

دتقدیر کچکول پر غاړه مرګ نـــه خیر دهستـــۍ غواړو

دادنیا څـومره لـولۍ ده ، دادنیا څومره سپـــیـــره ده .

۳ / ۶ / ۱۳۷۰

کابل

# مساپر

څه ذبنکلو او ښکو ستوری مساپر پر خاورو خوریم
دچا سترګو نه لویدلی یو ټوټې ټوټې انځوریم
اوس به چیرته پسې لاړشم نا اشنا کوڅې دي ډېرې
دا د زړه تیر به مې څوک وي چې یې زه د شګو کوریم
چې یې ټپ په سترګو ړوند کړم ترې سړو بادونو یووړم
داد چا د نظر دودیم؟ دادچا د نغري اوریم؟
قتلوي مې چې خوبونو، لیونی خیال مې چې وژني
دا د کوم پښتون شملې ته د مغول د خولې پېغوریم
ځغلوم آس په دریاب کې، ګر ځوم ببرې په وچه
دا د کوم جنون امسا یم؟دا د چا د عشق شبکوریم؟

۱۳۷۰/۶/۸

کابل

# پیاله

داځــوانــي مــې صدقه شه ،خو پیاله مې تشه مه شه
دزړګــي لپــه چپــه شــــه ، خو پیاله مې تشه مه شه
ښه پوهیږم چې مې وژني دابر بنــدې دتــاک پیغـــلې
عمره !یو ځاځکې نشه شه، خو پیالــه مې تشه مــه شه
څوئې څښنم نه تمامیږي راته څه دزهــرو سینـــد شـــو
دادژوند وچه چینه شه، خو پیاله مې تشـــه مــه شـــه
داد دوه کاڼو دنیا چې دومره ګرانــه پرمــوږ پــلـــوري
لکه دود پر اور خوره شه ، خو پیاله مې تشه مــه شـــه
نه په بر دعمر خوښ یم، نه په ګز دژوند خــوشحـــالــه
ټول دلوخو پښو ناره شه، خو پیاله مې تشه مــه شــه.

۱۳۷۰ / ۷ / ۷

کابل

# لاره

دژوند مزي خولنډ شول هغه شپه قراره چیرته ده ؟

یاران دلارې ډیر دي خوملګرو لاره چیرته ده؟

کاروان مو دسپوږمۍ ترڅنګ برشو ،خوزموږ مینه

چې تاویل څاروانه ! اوس دخدای لپاره چیرته ده

ساقي ! راځئ وچې شوې ډالۍ ورته دزړه لپې

زموږ دوینو تږې داوید ه خماره چیرته ده

موږه سادګان ئې ددوکو په ژرنده دل کړلو

ای عشقه ! ددروغجن دیدن هغه رو یباره چیرته ده

دادومره پیرۍ شپه کې دسبا سبا ناری چې دي

شمه مو دنیمزالو ډیوو تر سهاره چیرته ده؟.

۱۳۷۰/۸/۳

کابل

# کب

سیند لاهمغسې

ځپاند روان دی

او دا سپین ږیرې جاله وان

خدای زده

پر کومې دې شګلنې غاړې

خوب وړی دی نه ویښیږي.

سترګه مې ورپیده

اوستا دکور کوتره راغله

ستا راکړی ګل ئې

زما شملې نه یووړ.

زه پوهیدم چې

نن به داسې وشي

او نور به هیڅکله

در ونه رسمه:

بیګاه مې خوب کې

له لاسونو ځنې

کب لویدلی !

۱۳۷۰/۱۰/۳ کابل

# مینه

نیمه شپه ده ، نیمه شپه ده
د سپوږمۍ څانګو ته ناست یم
یو څو سیوري راته ناځي
لکه ډمې عربانۍ.
د جنت پیالې ئې راوړي
څه وریښمینې پریښتې دي؟
رانه اخلي تاج د عقل
د جنون جوغه ئې راکړه.

* * *

اوس د زړه پر پاڼو لیکم
ستا د دوه سترګو غزلې
لکه خدای چې مینه لیک کړه
دا د حورو په لاسونو.
جنوري ۱۹۹۱ مسکو

# ثانګه

دکومې شپې بلهډیوه ئې ثانګې؟
چې مې دزړه په کور خوره ئې ثانګې !
لږصبر وکړه چې وزګار خوشمه
څنګه بې صبره پیمانه ئې ثانګې؟
شیبه دژمي دراتلو خونه ده؟
داسې چې بیا کږه وږه ئې ثانګې !
نه چې یاغي شوندو مې وکړ تېرى؟
له شرمه بیا چې تکه سره ئې ثانګې !
څنګه دعشق پرقیام نکړم باور؟
چې راته سیورى او شمله ئې ثانګې !
دوخت سیلۍ دې رانه وړاى کله شي
دپښتني کور میلمنه ئې ثانګې !

جنوري ۱۹۹۱

عشق آباد

# زه او غر

تاسو مې پېژنئ؟

زما د تن هډوکي

او د خاورو په رنګ مسته وينه

زما د غرونو د هستۍ نښې دي

ما مې د غرو له تيو پېـ رودلي.

زما د کور د بامبو تې له پاسه

غر ولاړ دی

او په انګړ کې

هر قدم ته د خيړيو ونه،

په هريو ښاخ کې يې

د لمر د زيړيد لو کيسه

او شين آسمان يې

خپلو ستر ګو ته

له پاڼو نه

رانجه پوروي.

ما ته د خوب او ستړيا

چم نه دی زده

تيارو ته ستوري،

سيـندونـه هم مـري

اســـحـــاق نـــګيـــال.

دسبا بر بنډو پیغلو ته

لمنې ګنډم

او کرۍ ورځ ستګې په لار تیروم.

سترګې په لار یم

خو د څه لپاره ؟

نه پوهیږم !

وه چې زما تر سیوري ها خوا

دادنیا نن څومره ښکلې ښکاري

دریغه !

له شرمه راته پاس

دکتو وس نه لري.

۲ / ۱۱ / ۱۳۷۰

کابل

# دغنمو وږی

لوی احمد شاه بابا ته:

(١)

دغنو وږی زما دپگړۍ څانگه

دغنمو وږی زما دغرونو ژبه

دغنمو وږی زما دماضي درمند

دغنمو وږی زما دسبا توره.

* * *

دغنمو وږی زما داوښکو تکی

دغمو وږی زما دموسکا پانه

دغنمو وږی رنگ دښاپیریو

دغنمو وږی زما دیار سندره.

* * *

دغنمو وږی لمر دشپو دتیو

دغنمو وږی سیوری دغرمو مې

سیندونه هم مري اسحاق ننگیال.

دغنمو وړی وږم د سپرلیو
دغنمو وړی تن د شنو خیریو.

* * *

( ۲ )

دغنمو وړی پاس پر شملې شین شو
طلائي تاج ئې نسکور کړ له سرونو
دغنمو وړی شنه دویاړ جنډه شوه
لکه سره وینه آیت دپاني پت شو.

* * *

دغنمو وړی توره دبریښنا شوه
ددښمنو وریځو ګیډۍ ئې کړې خیرې
دغنمو وړی زماد غرونو باد شو
له هیبت نه ئې زمرو ګیدړې راوړې.

* * *

دغنمو وړی وینه دغیرت شوه
په ککرو کې ئې اوردایمان پوکړ
دغنمو وړی زما دپلار شمله شوه
تېتېدل ئې لکه ستوری چیرته نه زده.

* * *

دغـــنـــمـــو وړی اور شـــو پـــر نـــا مـــردو

هـــره لـــویـــشتـــه ئـــې تـــنـــور کـــړه پـــر بـــګوو

دلمـــر بـــڼ ئـــې له لـــویـــدیـــزې ســـیلۍ خپـــل کړ

دشمـــال دبـــاد تـــرخـــه ژبـــه ئـــېـــپـــری کـــړه.

* * *

دغـــنـــمـــو وړی ټـــول هـــیـــواد شـــو

دغـــنـــمـــو وړی ټـــول ولـــس دی

دغـــنـــمـــو وړی زمـــا دوطـــن هـــســـک شـــو

چـــې تـــر غـــاړې ئـــې دبـــل لاســـونه لنډ دی

* * *

دغـــنـــمـــو وړی زمـــا دپـــګـــړی څـــانـــګـــه

دغـــنـــمـــو وړی زمـــا دغـــرونـــو ژبـــه

دغـــنـــمـــو وړی زمـــا دمـــاضـــي درمـــنـــد

دغـــنـــمـــو وړی زمـــا دســـبـــا تـــوره.

۱۳۷۰ / ۱۱ / ۳

کابل

# کښت

دزلفو شپې دې راوړې خونسکورې درنه نه شي

ته ګوره هغه کړې وعدې نورې درنه نه شي

بلد نه یم په غېږ کې دسپېڅلې ګناه چیرې

دا شوندې وچې روږدې دي سمسورې درنه نه شي

ما څښلي کله نه دي ساقي تور شراب په جام کې

ستا سترګې تکې سرې ښې دي چې تورې درنه نه شي

کمڅۍ دې راته دارکړه چې منصور شمه ژوندی شم

وېرېږم له هغې نه چې منګورې درنه نه شي

له وربځو نه خیر نشته کښت مو هم له سینده لېرې

سپرلیه ! څوغوټۍ دي چې کمزورې درنه نه شي.

۱۳۷۱/۱/۱۴

کابل

# عبدالباری جهاني ته «۲»

د هغه د شعر په ځواب کې.

مادرته نه وې چې یــــاغـــي شـــو اولــــس؟

مادرته نــــه وې چـــې ژړېــــــږي وطـــــن؟

مادرته نه وې چې نړېــــږي غــــرونــــــه؟

مادرته نه وې چې ورانېـــــږي وطـــــــن؟

* * *

مادرته نه وې چې د کار غــــیو ســــیوری

تاج د شیطان شولو ټوي پـــــرښتــــــې؟

مادر ته نه وې چې د حـــــورو حـــــسن

پړه موپلوري، خرڅوي پـــــرښــــــتې؟

* * *

مادرته نه وې چې د نـــــن سنـــــــدره

غریبه اوښکه شــــوه پهـــاوروســــوه؟

مادرته نه وې چې ډیـــــوه د ســــــبا

ماته هنداره شوه په کــــــور وســــوه؟

* * *

مادرته نه وې چې هـــادرنــــې لــوپتې
داوراو وينو پـــــر ګـــودر زانـــــګې؟
مادرته نه وې چې ها سپينځــــلې تـــسبې
د څو لـــــو ليــــو پــــر تــــتر زانــــګې؟
ما پـــو زخــــمـــي تــــن دوطــــن ژړلـــو
اوس لــــه وطــــن نــــه وطنــــونــــه جوړشول
مـــــا يـــــې لايــــو درد دواكــــړى نـــه و
اوس يـــې له هـــر تـــپـــه تـــپـــو نـــه جـــوړ شول

* * *

تـــه اويـــې مـــه ژاړه جـــوړيـــږي وطـــن
زه ويـــم چـــې نـــه يـــې نـــا خبـــر بـــه يـــې
تـــه وايـــې اوردى بيـــا ګلان دى پســـې
زه ويـــم لـــه دې اوره بـــهـــر بـــه يـــې.
۱۳۷۱/۱/۱۵
كابل

# وينې پر کاله

اوښکې د شببو که د کلو وې په سر واوښـــــتې

لپه وې اوبه، که په نېزو وې په ســـــرو اوښتې

ټول عمر باران و ،يـــوه شپـــه مو رڼه ونه ليده

پوه نه شوو د ژمي که سپرلو وې په سرو اوښتې

نه به وايې ژبه د غه ګونګ زړګی شاهد خــودی

لښتې د کمڅو که توپانو وې په سرواوښتـــــې

خير که مو سر لاړ د پېښو پل مو ژوندی پاتې دی

څو ورځې کانې په قافلو وې په سر واوښتـــــې

سترې نه شوې غاړې زموږ اودا پڅې چړې د دوی

وينې پر کاله د پېښتنو وې پر سر واوښــــــتې

۱۳۷۱ / ۱ / ۱۸

کابل

# بېديا

سپېره بېد ياده پکې پل د بنيا دم نشته

يوځو پېر بان دي له پرديو غرو راغلي

بربنډ پښې ، ناڅي ،ناڅي

چې تياره شي بيا سينې پر خپلو ميندو سړوي

پرخواږه خوب پر بوځي.

* * *

دزهروونه ده ولاړه

پر بيزو ادې يې سيوری کړی

بيزودزهرو پرګي خوري هره ګړۍ ورځنې حمل اخلي

دورځې ديرش، ځلويښت ځوانان شي

بيا قتلېږي

خو بيزوادې پرګي خوري

اولګېاده هره ورځ نوي بچېان زېږوي.

پېربان ګډ ېږي

دبيزو ادي په وير او پر خواريو خاندي

چې شپه تياره شي

بيا سينې پر خپلو ميندو سروي

پرخوا ړه خوب پرېوځي

سپېره ببدياده پكې پل دبنيادم نشته

۱۹ / ۱ / ۱۳۷۱

لغمان

# ګیله

زه دې د کومې ښې ځوانۍ په خاطر؟

ستا دنیمګړې مینې

د سمسور تیا په هیله

پیالې په سر واړوم.

اوزه دې کومو مهربانو سترګو

ته شین غزل ولیکم؟

پیالو ته شونډې

دغزل زلفو ته لاس نه ورځي

کله چې زړه کې مې یې.

۱۳۷۱/۱/۲۲

کابل

# شیخ

شیخ بې نعمې ګڼه پرېږي

شیخ د جومات کړکۍ ترلې دواړونو د بوالو ته ناځي

شیخ د خپل عشق د باکرې مور

له تیونو نه شراب څښلي دي.

* * *

شیخ لکه سپینه پاغونده

بادونه یوسي

بېرته راشي

او خپل مست سیوري ته بنه وخاندي

شیخ د کوکنارو ګلان و ټومبي په تورو څڼو

شیخ توره شپه شي

په غلا غلا د زلیخا د مخ پوړني پسې لاس غځوي.

شیخ بې نعمې ګڼه پرېږي

شیخ د خپل عشق د باکرې مور

له تیونو نه شراب څښلي دي

شیخ تورو څڼو کې ټومبلي

د کوکنارو ګلان.

۹ / ۳ / ۱۳۷۱ کابل

# ګړۍ

ګړۍ پېرۍ ده چې د نیمې شپې له ټکي ځني نه خوځیږي

ستوري سو ځي،

شمعې مري،

د ترږمیو لېونۍ د زنداني شپبو د ژوند خړې آینې ته ناځي

کانه په لار کې د میږیو د راتلو شپبو ته غوږ آیښی دی

* * *

د دوو دښتو د کمڅو پر سر سپوږمۍ بندي ده

او مساپرې پښې د غوږ ګود کاله پر لوري لاره باسي

متې زخمي دي،

بې نو کانو ګوتې څنو کې د شپې پاتې دي

ړوند د ګلونو د رنګونو تماشې ته ناست دی.

* * *

ګړۍ زموږ د ژوند سپېڅلی او محکوم کلام دی

ګړۍ، بیړۍ ده چې کړه ملا سمولی نه شي

ګړۍ غریبه

د پیړیو د سکون پېټی په سر ګرځوي.

* * *

کانه په لار کې د میږیو د راتلو ښکالو ته غوږ ایښې دی

ړوند د ګلونو د رنګونو تماشې ته ناست دی.

۱۴/۳/۱۳۷۱

کابل

# پوښتنه

دومره قدری ياد شي چې يو څه خودې په تله ووې
پوه نه شوم قسم دی چې تا څه ووې ما څه ووې
ټوله شپه رښتيا دې پټ دزړه کورکې ساتلی وم؟
يو غلچکی خوب و په کاله مې تېر بده ووې
ستا دنظر تندر ته مې ټول خوبونه درمند شول
چاراته له وربځو نه خبر دبارانه ووې؟
ويښ وم که ويده وم خدای زده ډېرې مودې تېرې شوې
مينه دې له زړه وه او که هسې دې په خوله ووې؟
کړې مې وعده وه چې دې بيا په کلي نه درځم
هېره وه له ما نه خوريښو د ګرېوانه ووې
وپوښته رښتيا ترې کوم مغول دې چم کې شته که نه؟
څومره سپکې سپورې مېلمانه ته پښتانه ووې؟

۱۴ / ۵ / ۱۳۷۱

کابل

# داکلی. داوطن

کلونه تبرشول، ځواني مري

او درنګونو سپرلي

زموږ پرسوي او غريب مالت

ګذرونکړ.

ورمو د ستړي شپون

دځنو په ځنګلونو کې نخاونکړه

دتورو دښتو دکېږدیو دوریو ژبې

بیا وچې شوې.

* * *

بیا مو دکلي دچنارو

پرنیم سوبو تنو اوربل شو

دشنو غنمو دوربښمين فصل کمځيو ته یې

رنګ بیا د لوګیو ورکړ

بیا یې د ستورو سره تو کری،

دتورو وریځو

دشیطان مریې ته وبښله

* * *

کلی ، وطن

بیاد ځپلیو د میخونو جنګ کې سا وباسي

کلی ، وطن مو

د ځو تورو تجمل ته

بیا له سره قربانېږي

هرقاتل یې

دزخمي ځان له هډوکو ځنې

لاستې د «بیرغ» اخلي.

* * *

زموږ سرونه

زموږ وینې

دشنو چرسواودبنګو هغه شنې دانې دي

چې دودوي یې «باباقو» ملنګ

دغم او دسترېا شېبه کې.

۱۳۷۱ / ۴ / ۲۵

کابل

# جنازې

وربځو د ستورو جنازې ښخې کړې

بیا پر دې غرو

درنو ستورو د نارنجو ګلان نه وربرې

راته د سترو مسا پرو پښو پل ورک شو.

* * *

هره شپه مې ځوانې مېرې تندرونه وژني

هره شپه د ځوانو مېړو جنازې ښخوم

خدای زده

دې لار کې چېرته روغه څېړۍ شته او که نه ؟

چې راته غېږ پرانیزي

څادرمې باد وړی دی !ږ

۱۳۷۱ / ۴ / ۲۶

کابل

# کلی – د ېره

ماته د کلي مازيګريو ځلي بيا وخندل
دمرووړ ووړمو پېغلو مې د شونډو جل وهلې پانې بيا ښکل کړې
کلی مې بيا لکه دوينې د زړګي پرفصل وبهېده.

* * *

د پلار حجره لکه کنډر پرته ده
نور ترې د سترو بزګرانو دچلم دودونه راخېږي
نور يې انګړ کې د ښاغلو مساپرو د څپليو د ګل مېخونښې هم نشته
له ماتې ملايې نړېدلي د سنځلو نازولې څڼې
او پلار بوازې د کابل په هديرو کې مساپر پروت دی.

* * *

بيا مې د کلي د آذان آواز له خوبه ويښ کړم
آذان پر کلي باندې خور دی خو په غږ کې هماسې
د سپين ږيری « بلال» سوز نشته( ۱ )
ټول د پکول شاته لمونځونه کوو
او دجومات محراب له ما نه د « بلال» سپينه پګړۍ غواړي.



سيـنـدونـه هـم مــري اســــحــــاق نــــګيــــــال.

* * •

کلی هماسې له دېرونه ډک دی

د کلي لارې د زلميو د رنو د رنو ګامونو لاندې سا اخلي

خو ګودرونه رنګ دي

د کلي پېغلې انګېرونو کې د نيازړې ځرخې تاووي

او زه لګيا يمه د پلار زړه د بره چلوم

۱۸/ ۶/ ۱۳۷۱

- د شاعر منظور مشر تره مشهور ديني عالم مولوی عبد الحی دی.

# ګلونه

کرلي مې جانان دي په اورنو کـــــــې ګـــلونــه
زه هسې لټومه په ګلـــونـــو کې ګـــلونـــــــه

زاهده رانه کېږي چې ماښـــــام قضـــا ګـــانـــې
ليدلي مې دزلفو ماښامـــونـــو کې ګلـــونـــه

وږمې وې نابلدې د کمڅو له غـــرونـــو راغلــــې
زرغون مې شول د کلي په خوړونو کې ګـــلونـــه

هر ګوټ سره ګلاب شي تکې سرې د پيالو مورګې
جامونه په ګلونو کې، جامونه کـــې ګــــلـــونه

په شونډو کې موسکا خويوه وکوه جـــانـــانــه!
سپرلی شه غوړوه مې په زخمونو کې ګــــــلونــه.

۱۳۷۱ / ۷ /۲۵

کابل

# د «آدم» وصیت

زه «آدم» یم زه «آدم» یم

له جنته شړل شوی

پردې ځمکې بادشاه شوی

ورور دې ورور پسې کاڼي وویشت

نازولی زوی مې مړ شو.

* * *

زویه ! زرکاله پوره شول

یو څو ورځې دې مېلمه یم

څو خبرې درته کړمه

نن به یم سبا به ځمه.

* * *

دغه سپین مزی درواخله

د پستو پستو وربښمو

پکې حک مخ دنبیانو

د جمله وو بادشاهانو

پرښتو وو دی او دلی

له جنته دی راغلی.

* * *

خو وېښته زما دریرې

او همدا جنتي مزی

په بوه تابوت خوندي کړه

ورته جوړ قفل او کلي کړه

څو چې ته یې او دنیاده

پر دښمن غلبه ستاده.

* * *

داګوتمۍ مې هم دراخله

درته وبه ښیي لارې

دا «میمون» آس مې هم ستادی

ورسره بر وېښنده توره

هر بری د ستا بری دی

هر زورګیر د ستا مریی دی.

• * *

زما ننبې د ستا ننبې

زما لکړه ستا لکړه

زما لاره دستا لاره

زما چاره د ستا چاره

خوورو ستیہ خبره واوره

وینه توی زما دزوی کړه

دمظلوم زوی په بدل کې

زویه ځه ته هم قاتل شه !

د «آدم» د غاړې ګل شه !

۶ / ۹ / ۱۳ ۷۱

کابل

# د احمق په لټون

اوربېدلي مې کيسه ده خداى زده کله
له ملانه، له عامي نه که له بله
پو سپين ږيرى چې يې وخت دځنکدن و
په هوښيارو کې هوښيار او عزتمن و
خپل زامن يې کړل پر ځان باندې چاپېره
وې خبره درته کړم چې نه شي هيره
څه چې شته نيم يې په ما پسې خيرات کړئ
څه يې وېش نيم څه يې پخه او څه يې سقات کړئ
نيم يې ورکړئ د کوم ځاس نامي دله ته
کوم احمق، نادان، رذيل، حرامزاده ته
چې په نوم د حماقت ترې څوک برنه وي
دغه نيمه برخه ټوله دې دده وي
سړى مړ شو د خيرات کټوي بارشوې
ګېډې ډکې ددارا او دنادارشوې
زامن ټول شول مصلحت يې سره وکړ
د احمق سړي لټ--ون ته يې زړه ښه کړ
وې فرض کړى م--و بابا پر موږ داکاردى
پسې ګرځو په دې ښارکه په بل ښاردى

ګوندي وي چې په دې کار کې کوم حکمت وي

د سپين ږيرو خو په نېکو مصلحت وي

زامن لاړل نيمه برخه يې تر ملا کړه

په شپو شپو يې خپل زاړه کلي ته شاکړه

دا احمقو يې ښار له هر لاره

پسې تلل له يوه ښاره تر بل ښاره

لټوه هغوی احمق چې ښه شا خدا روي

احمقان خو ګڼې هر چېرته بسيار وي

خو شا خدار احمق هېچېرې پيدا نه شو

څو چې سرېې د پايتخت په کوڅو وشو

دوی له ورځو يوه ورځ ليدل په ښار کې

چې راجوړې دي مېلې په هر بازار کې

هرې خوا نه راټول شوي ښه ځوانان دي

څوک يې پيغلې، څوک زاړه، څوک هلکان دي

د چا شونډو کې موسکا وې دي غوړېږي

څوک تندی پرزنګنو وهي ژړېږي

يو خو اسازدی، پايکوبې ده او خندا ده

بله خوا چغې ناري دي او ژړا ده

چا کړه شمله پر سر ايستي زبوني کړي

ورونه ګرځي په مېلو کې هوري دوري



سيندونه هم مري اسحاق ننګيال.

دوی لیدل هغه کانې چې نه وې چېرې

دوی لیدل چې د مېلې په هغې خواکې

تخت ځلېږي درنګونو په رڼا کې

پکې ناست یو عزتمن سړی دی ګوره

چې وریږي پرې ګلان له هر لوره

طلایي تاج یې پر سر لکه دلمر دی

تیار سی‌ ورته سردار دی که لښکر دی

جوړ ټولګی ورته ولاړ دی د ساقیانو

ښکلې پېغلې او پکې دي د زلفانو

د مېلې پر بله خوا بله کیسه ده

دوی لیدل چې هلته بله هنګامه ده

دوی لیدلو یو سړی چې عزتمند دی

له یوې پښې له ونې نه ځوړند دی

څوک یې سروهي په سرڅوک په سوکانو

نه زړه سوی د جنکونه د ځوانانو

له ما شوم نه هم خیرات د خپل سر غواړي

خو وهي پکې هر څوک د لاس سوباړي

بیا په لټه د دلیل او د برهان شول

له بو چاځنې یې وکړل تپوسونه

چې رابښیه د خدای پار دی دلیلونه

سیندونه هم مري اسحاق ننګیال.

دیـــوه مـــــولـــــې دومره هر کلـــی کــــړ؟

او له بل ځنینې مو جوړ د کوڅې سپـــی کــــــــړ؟

وې هغه چـــــې اوس د تخـــــت پر سر مستـــي کړي

پـــــس له دې نه ې به پر موږ به بـــاد شاهـــي کـــړي

او دابل چــــې تـــا لیـــده ســـر پـــــــه ژړاو

یـــــو ساعـــــت مخکـــــې زموږ پر ســــر بادشاو

موږ دنـــــوي هــر کلـــی کـــړو څـــــه چې غواړي

بیا چې زړو شو نـــو وهــــو پکــــې ســـــو بـــــاړي

دبابازامــــنو ووې چـــــــې مــــــو ومـــــــوند

ها احمق چې مو په ټول جهـــان کې نـــــه مـــونـــــد

د شاهي په باغ کې ناســـــت نــــه ګـــوري منــــي

ښـــه پـــــوهیــــږي د سبـــــا ســـــو بـــاړي ویني

نیمه برخه د بــــــابــــا یـــــې رابـــــهـــــر کـــړه

بیا یــــــې ټــــولــــه دبــــاد شـــاه په لاس کې ورکړه.

۱۳۷۱ / ۱۰ / ۷

کابل

# بادشاه او معشوقه یې

تېره هېره زمانه کې یو باد شاو
نازولی په هر ملک ددې دنیاو
خدای ورکړې دبدبه د تاج او تخت وه
په هر ځای ورته ګونډه اوښه د بخت وه
خزانې یې وې د شتو وتې له شماره
هر خزان یې ښایسته و له بهاره
نه کمی و د لښکرو نه د زرو
نه کمبو د پکې د مینځو اونو کرو
شمار یې نه و په حرم کې د بې بیانو
نه د ښکلو معشوقو نه د ساقیانو
هر محل یې د دنیا پر سر جنت و
رب ورکړی له ازله دا عزت و
د بادشاه په دلبرانو کې یوه وه
چې په ټولو کې ښایسته لکه ډیوه وه
لکه حوره هسې ښکلې نازولې
ته به وایې له جنته ده راغلې
چا لیدلی داسې حسن چېرې نه و
ډېر شاهان یې په لیدو پسې ړانده و

دبــادشــاه ټــولــه هستــي ددې هستـــي وه

دشپې ورځـــې پايکوبې وه بـــد مستـــي وه

دغه نورې معشـــو قـــې، نـورې بي بـېـــانې

ورته ټولې دپـــښـــو خــاورې وې خوارانـــې

پـــو ويـــښتـــه ددې او داټـــولـــه دنـــيـــا

بـــدلـــوه کلـــه ددا ســـې عشـــق بــادشـــا

يوه ورځ يې په شپبـــو د بـــــد مستۍ کـــې

دخوندونو اورنګونـــو په ځـــولـــۍ کـــې

سرې د ناز شونډې راپـــرانيستـــې اداتـــه

څـو خبــرې وې چـــې ويـــې کـړې بادشاتـــه

وې پلانې حـــاکـــم دې ډېر درتـــه خايـــن دی

تـــه پـــوهـــېـــږې نـــه خـــو ما تـــه مبيـــن دی

* * *

چـــې خيـــمـــه د مستـــۍ ټـولـه شوه سهار شو

د مظلوم حاکم تيارې خـــونـــې تـــه لا رشـــو

پس له څو ورځو پو ښتنـــو احـــوالـــونـــو

پس له ډېرو تحقيقونو، تپـــوســـــونـــو

شوه معلومه چې تقصير د حاکـــــم نـــه دی

تش تومت د معشوقـــــې د ترخـــــه ژبه دی

پس لــــه هغـــــې باد شـاه ډېر ورنه خپه شو



سيـندونـه هم مـري                                        اســـــحـــاق نـــګيـــــال.

سلطان لاړه درباريانـــــو ته جـــــرگه شـــــــــو

وې کـــه څـــه هـــم ډېـــر پـــردې ښکلـــې ميـــن يـــم

خو والله چې پر هغـــې پېـښـــې غـــمـــجـــن يـــم

زه وېـــرېـــږمـــه کـــه بيـــا هـــــم داســـــې وشـــــې

خداى خبر چې ددې ملک چــارې بـــــه څـــه شـــــې

دربــــاريــــانـــو ورتـــــــه ووېــــــل سلـــــــطانـــه

نـــوريــــــې مـــه منـــه خـــــبـــره عـــاليشانـــه

بـــاد شــــاه ووې نـــا مـــمـــکنـــه ده مـــلـــگـــرو

چـــې ځـــــان منـــع کـــړم د هـــغـــې لـــه خبـــــرو

* * *

يـــوه شپه بــــاد شـــــاه دربـــارنه رابـــهـــر شـــو

معشـــوقــــې سره مـــلـگـــرى پـــــه چکـــرشـــو

بــــر بـــېـــړۍ ســـــواره روان وو پــــــه دريـــاب کې

معشوقه يې کـــړه گـــوزاره پـــــه تــــــالاب کـــې

معشوقه لاړه خــــو اوريـــــې د عـــشــــق بــــل و

لگيـــــدلــــــې د بــــادشاه پـــر تـــش گــــو گل و

بيا باد شاه شېبې پر اوښـــــــکو لنــــدولـــــې

اوښکې څه چې يـــې ســـــرې وينـــــې بهــــولې

باد شاه هسې خوار وزار او تـــــور کمنـــد شـــــو

چې گوزار د عشق او مينې لـــه سمنـــــد شـــــــو

بادشاهي يې په نظـــر لکـــــه زنـــدان شـــوه

چـــې د عشـــق دنيا يې رنګه په جهان شــــوه

دربـــار بـــــانــــو ورتـــــه ووې ای امــــيره !

ای زمـــــوږ د ســـرو سيــــور يــه ای زهيـــــــره !

اوس چې مرې ورپسې ولــې دې غـــرقـــــاب کـــړه

خپله مينـــــه دې لاهـــــو په دې دريـــــاب کـــړه

بــــادشـــاه ووې ورتــــــه ای عـــــا ليجنـــاب

زه خـــــراب نــــــه يــــــم نـــــه ملک زما خراب

۱۳۷۱ / ۱۰ / ۲۹

کابل

# پر قبر مې

مامې دا خپل قبر په سترګو ولید

قبر ،

زما د سفر نوې بېړۍ

دو چې ځمکې سمندر کې غرږوې د مسا پرو د مسا پرې شپيلۍ

او قبر کښونکي

سترې سترې رانه پېښو ځنې ځپلۍ وباسي.

* * *

بربنډې پېښې، سپينې جامې پرغاړه

زهمې د خپلې جنازې پر سر ولاړ يم

د ملا غږ ته مې غوږ نيولی

چې بلوي مې پر ګناه د ثوابونو ځراغ

زه ورته سرې سترګې ژړېږم

وايم دروا غدي

ملا مه يې وايه !

* * *

له کور او کلي نه مې ساندې خيږي

ادې دزوی چيغې وهي

بچيان دادا بيرته له خدايه غواړي

دچا په خوله کې چيرته نشته چې شاعر مړ شوی

اودلته زما په جنازه کې

یو شاعر

خپلې مير منې سره ناځي اوسندرې بولي

١٣٧١ / ١١ / ٥

کابل

# بزګر

څنګه سرې رلې په سروا خیستم؟

زماد لاس خولو فصل نه یو شین بوټې راپاتې نه دی

چیرنه یو ژیړ وړی هم نشته چې یې پاس پر پټکې کیږدم

له ګودر ځنې په بر بټو کې موسکی تیر شم

په مخه لاړشم، شاته وګورم

پرښکلې آشنا بیا دیوې بلې وعدې زیرې وکړم

رلیو څه ونه کړل؟

بزګر لګیادی له خپل لور سره خبرې کوي

بزګر ژړیږي

او وریو ورته غوږ نیولی.

۱۳۷۲/۱/۶

لغمان

# بنګړیواله

بنګړیواله توړې بیا پر کلي راغله

بنګړیواله شرنګ پرولو،

دښایسته رنګونو ځانګه

بنګړیواله زموږ دکلي

دزلمیو د «طالعو» دنازکې غوټې وږم

بنګړیواله زموږ دکلي

دپیغلو ټو داختر دشپو زیرې.

* * *

بنګړیواله توړې راغله

ږنګه بنګه سانیولې

په پښتو پښتو ږګیرووېې

دهر کانې تپوس وکړ

خوزموږ دکلي لارو

دپردیسې بنګړیوالې

سینــدونــه هم مــري　　　　اســــــحــــاق نــــګیــــــال.

تش دخولې سلام وانه خیست

وې یې: هو ! رښتیا زړه شوم

دغو سترګو رب وهلو

خدایزده چیرته

بیا پر کومو نابلدو کوڅو سرکړم؟

* * *

بنګړیواله توری تم شه

حک حیرانه پښیمانه

بنګړیوالې په لستوني

دښو دوړې جارو کړې

هردیوال یې ددې کلي

له خواره نظره تیرکړ

وې یې: نه ، کلی همدادی

داکوڅې هغه کوڅې دي

خو حیرانه یم چې څنګه

نن مې پل پکې پردی شو؟

* * *

بنګړیواله رنګیدله، بوګنیدله

چې له لرې زموږ دکلي

پخوانی ښار وښکاره شوه

يو اشنا سلام يې وکړ

او دانه يې دانګورو

دبوډۍ په خوله کې وکړه

وې يې: ځه نو بنګړيوالې

ځه ورځه پر مخ دې ښه شه

اوس نو هغه کلې نه دی

اوس هغه بيبيانې نشته

او دښکلو مړوندونه

ډير کلونه شول چې پرې دي.

۱۱ / ۱ / ۱۳۷۲ **لغمان**

# غـچ

...خو تریخ دزهرو جام دی

نه څه سره لري نه سپینه

نه یې رنګ شته

نه یې خوند شته

نه یې پاتې شته نه مړینه.

* * *

عجیبه ډالۍ یې راوړه

پرښتو ، دجنت حورو

شپیلولي راته هډوکي

قتلوي سرتوره مینه

سین دزوو دی تربڅاڅي

وریتوي دزړونو وینه.

* * *

اوس پوهیږې؟ څه یې وکړل؟

ها لو بګرو دباغونو؟

یوه وښوده په ګوته

بل يې دل کړه پر غابنونو.

* * *

اوس يې غېچ له موږه اخلي
ږدي موژرندې پرسرونو
ورشه غوځه دې کړه ونه
راشه وادې خله غنمينه
نه يې رنګ شته
نه يې خوند شته
نه يې پاتې شته نه مړينه

قتلوي سرتوره مينه
وريتوي دزړونو مينه
...خو يو تريخ دزهرو جام دی
نه ځه سره لري نه سپينه ( ! )
۱۲ / ۲ / ۱۳۷۲
لغمان

# ښاپيرۍ

دغره په لوړه څوکه کوري

چې دستورو دهيليو تر ښکو لاندې

زما دمينې ښاپيرۍ ناسته ده

چيغې وهي

ټُندې اخيستې پرې باران نه اوري

په تور وربل يې

دچندښو پاښو اور واخيست

غزل وسوځيد.

*   *   *

څو مره درنه او پښتنه ده اوښکه

اوښکه دزړه له نازولې کوره راغله

زما په لېمو کې راپرېوته

اوبه اوبه شوه

اوزه لګیا یم لوړې لوړې څوکې ته

په لېمو کې اوبه خېژوم

څوکې ته ورسم نږدې شم

بیا دځمکې تل ته ولوېږم

اوبه اوبه شم.

ښاپېرۍ تنده وژني

اوزه اوبو وږې یم !

۱۶ / ۲ / ۱۳۷۲

# سیلاني بلبلې

سیلاني بلبلې لاړې
نور د باغ د خوب په سین کې
د بلبلو د سرو ژبو
د شنو چیغو تصویر تت دی.
نور د باغ د سرو ګلونو
د بلبلو د سرو شونډو
نازولې مینه مړه ده.
نور د پاڼو پر کمخیو
سهارونه د سپرلیو
چیرته پرخې پرخې نه شول.
« سرله سره پالنګه هسک کړه فتح خانه
لویه خدایه ، سیلاني بلبلې والوتې له باغه» .
سیلاني بلبلې لاړې
نورپر آس د ننګیالیو
د پګړیو د شملو
د لوړو لوړو
آسماني غرو پته نشته
نور د بربتو پرسرونو

هغه تاوه

دپښتون

اسرافيلي شپيلۍ کښه ده

نور هغه ډګر مات شوی

او پر غاړو دپردیو

هغه مستې

سپینې تورې لښتې نه شوې

«رابيا» بله ناره وکړه:

«سر له سره پالنګه هسک کړه فتح خانه

رابيا ګلې پونده ورته کړه سپره شوه».

۱۳۷۲/۳/۳۱ کابل

# روږده

زړه شـــړلــــې يــم لـــه کـــوره اورمـــې بل دی په کاله کې
لړمې پرېږده چې ويده شم ستا دزلفـــو پـــه ځــنـــګله کـــې
سترګې ستا سترګو کې لامبي ملامت رابانـدی مــــکـــړه
تنده کله ماته شـوې دکبــــانو پــــه ويــــالــــه کــــې؟
ما دمات زړه له هر شرنګه دشنو چيغو مالـــت جـــوړ کـــړ
نه دی نوم وځي له زړه نه، نه مې شپه کوي په خـولـــه کـــې
دسينې پر باغ دې تلم ستا دګريـــوان قـــراول تـــم کــــړم
اوس نو پرې چې مې زيندی کړي ستا دغاړې اميـــــله کـــې
چې په پټه دې خوله راکړه تـا په خپلو لاســـو غـــــل کـــړم
نن ستری وي سبا درمند روږده داسې کوي غـــلــــه کــــې.

۱۳۷۲ / ۴ / ۳

کابل

# تنده

دفردوس دعیش کوربه دي
غرقوي دنیا تر نوکو
خو لاتشې مړی غواړي
دسوالګر ساړه نغري نه.

* * *

دسوما جامونه لاس کې
زموږ دوینو لامبو زن شول
نه سړیږي ، نه ماتیږي
دمړو ماشومانو تنده

۱۳۷۴ / ۴ /۲۱

کابل

زما د دویشت کلن ځوان وراره شفیق الله متین په شهادت

# ویرنه

خلکو ګـورئ چـې پـر کـور مـې دغـم اور لکه غر پریوت

دفلک خونړې لاس مې لکه تـبـر پـر سـر پـریـوت

هریو کانې مو قاتل شو راته ښـل ښـل پـر در پـرېـوت

دسرووینو په کا له کې بیـا دویـنـو ګـودرپـرېـوت

څه درانه چنارته ناست هم دمـر ګـي پرې خنـجـر پـرېو ت

یو روڼ لمر مې دکاله و ، سحروخـوت سحـر پـریـوت

مرګه څومره ګنـاه کار یـې ورانـوې دعـزت کلـي

له بې پتو ځنې تښتـې ړنـګـوې دعـفـت څـلـي.

* * *

خدایه څنګه به شم صبر څنګه اور مړکـړم پـه زړه کـې

زیږیدلې یم لویـږم دادویـر پـه زنـګانـه کـې

چیرته اور چیرته توپان وي راته سـم ووري کـالـه کـې

غم زما دکور کوربه دی ، مرګ مې ناست پـه دالانـه کـې

نه په غیږ کې دنیا لوی شوم نه په غیـږه دنـیـکـه کـې

پرون پرې دپلار مری، شوه نن سـا ه قتـله پـه وراره کـې

څه دغم په ورځ پیدا یم څـه دغـم په ورځ بـه مـرمـه

لویه خدایه لویه خدایه !داڅـه یـمـه داڅـه یـمـه.

سیـندونـه هم مـري                    اســـحـــاق نـــګیـــال.

* * *

ټول کهول مې جار جاري واې خو « شفيق » راته پـه کــوروای
دازلمی ستوری دکور مې دنیـــکه پـــر درګــاه خـــور وای
تل دقام دپګـــړۍ ګل وای دټـــبـــر دپـــت انـځـــور وای
غم یې تل زما پـــر ســر وای دادژونـــد پـــر نیـــلي سوروای
دده درد وای زما مرګ وای دده کـــور وای زمـــا ګـــوروای
زما خونـــه وای خـــرابـــه خـــو ودان نـــغـــری د ورور وای
تو لعنت زمـــا په غـــم شـــه زه یـــې زوړ کړم دی زوړ نه شو
کال په کال رانه کښت ریبي خو ورېستـــرګـــې دی موړ نه شو

* * *

لا یې سیو ري ته ناست نه وم ځوانیمرګ شـــو بهـــار وســـو
سم چې ګل جوړ شو شملې ته ، شمله وســـوه ګلـــزار وســـو
چې راخوت دسهار ستوری ، ستوری وســـو سهـــار وســـو
هغه رنګه ځواني وسوه هغه دنـــګ دنـــګ ســـپیـــدار وســـو
ځاریدې چې ور نه ښکلې هـــا دښکلـــو ســـردار وســـو
ګلالی لالی مې وسو ، وطن وســـو ځـــیـــد ښـــار وســـو
پر هر سر باندی اور بل دی سر دې پورتـــه کـــړه « شفیقه».

* * *

وروره ته خو دګور نه وې ستا ځـــوانـــي دګل ځـــوانـــي وه
ستا ښایست دګل ښایست وه ، ستا ثانـي دګل ثـــانـــي وه



سیـــندونـــه هم مـــري                                اســـــحـــــاق نـــــګیـــــــال.

ستا دخولې دتکبیـر چـیغــه ددی کلــې ودانــې وه
ته دسرو یاقوتو کان وې خــو وطــن کــې ارزانــې وه
ورور دورور په لاسو وژنې دلتــه دا مســلمــانــې وه
دلته داسې نادانــې ده، دلتــه داســې نــادانــې وه
مګر ته یوازې نه یې دلتــه دنــګ غــرونه قتــلیــږي
دلته سیند پر چړو وژنې دلته ټــول وطــن نــړیــږي.

۲۲ / ۴ / ۱۳۷۲

کابل

# داسې لور داسې لوونه

ورېځې بیا لامبي پر اور وورې پر ګلو

دازلمی سپرلی خونه دی د سوځلو

له اسمانه د سکروټو غر راپرېوت

سوځوي مې ښکلی کلی د سنځلو

بیا د ګلو د حیا پر ناموس جنګ دی

څانګې سترې شوې د ځان پر قتلولو

د باغ سپین مړوند ربېلی دی اغزیو

پرې یې نه ښود چېرته جوړ ګرا ېوان د ښکلو

د سیندونو مست اوښان وسول له تندې

دهېلیو پېغلې بیا لاړې له کلو

د سپوږمۍ پر وربل مري غونچې د ستورو

لمر د ځان جنازه وړي پر خپلو ولو

موج دوینو ګلان وکول سپرلی شو

څه حاجت شته؟ دګلاب او د سنبلو

بیا لنده نه شوه ډوډۍ د «عیسی» جام کې

پاتې نه شول هغه سره شراب د څښلو

د پیالو پر شرنګار یو ویده ویښ نه شو

نه ساقي شته نه کنډول د کړنګولو



سیـندونـه هم مـري اســـــحــــاق نــــګيــــــــال.

یوې شمعې د شپو د ہو پر تندي ونه ویشت

یو پتنگ نشته لمبو کې د لامبلو

داویدې سترگې د بڼ پرې رنې نه شوې

چیغې پر ہوتې رانجو کې د بلبلو

فلک لور پسې اخیستی سترې نه شو

ددې مستو چتو ستورو پر رېبلو

نازولې غوټۍ نه شوې پکې بلې

تور لوگي دي چې تیکري شول دوربلو

دماتم ډمو بنگړي د ښکلو مات کړل

غوڅوي ورنه نکریزې له منگولو

په بر هر زړه مې لاس مه وهه جانانه

داخو سالو پټه نه ده د گنډلو

زرغو شوی چم په چم بر سات داوښکو

قتل شوي موسمونه د خندلو

داچمن وطن دارته بس نه شو

نه یو شین ډډ دچنار شته نه دولو

مني بیا ورته له سره سیخان سره کړل

دا لا له دي له ازله دداغلو

ددې خوارو په قسمت به باران نه وي

چې لمبې وروي پر کور د جل وهلو

یو پرې شوی رګ مو ښخ لکه تاک نه شو

یو سر نشته په دې ښارکې د ښندلو

نه د عقل پر آس سور، نه لیونی شته

نشته ژبه د زنځیرنه د وېلو

څه ایرې د بې قدرۍ ورباندې شنې شوې

دا درنې شنا ختې خونه دي دکتلو

ددې کلي ښکار یان مړه له سره وژني

غشي ولي بیا پر زړونو دبسملو

نه یو مټ دتیارو جنګ ته چېرته پاتې

نه یو لاس د خپل کرېوان د څیرولو

د لمبو تر خیمو یو « ابراهیم » نشته

پیدا نه شو یو «منصور» ددارختلو

بیالوېدلی دی «رستم» د«شغاد» څاه کې

لاره نشته دې ګړنګ نه دوتلو

نه یې ګرد په تورو دښتو کې د آس شته

نه ناري د شهسوارو ددانګلو

بیا یو شین زمری دې غرونو کې لوی نه شو

یو ه تشه جنډه نشته پر مورچلو

دشنو چیغو له کاروان سره سفر دی

ژبه نښتې په تالو کې د غزلو

سرله تورو خاورو پورته کړه« خوشحاله»

لا خو غچ د «هجري» پاتې پر «مغولو»

۱۳۷۲/۵/۹

کابل

# نه جام، نه څادر

څوتور سرې

څو سپین سرې

« یو څو اوښې »

« څوپسونه»

څه غریب سټرې کاروان دی؟

باد راوړې پانې ریږدې.

***

« قاف» لمبو پر سر اخیستی

ښاپېرۍ شوې مسا پرې

خدای خبر دی چې به دمه

بیا پر کومو غرونو کیږدي؟

***

څنګه رنګې میکدې دي

څنګه ښکلې شونډې سوځي

جانه بیا به دې ساقي شم

« که مې غم د ډوډۍ پرېږدي»

***

نه ترانګې د کیږدۍ شته

نه څپلۍ، نه څادرونه

لوټوي د جام ناموس مې

پر شهيد مې پګړۍ پټې پرېدي.

***

څو تور سرې

څو سپين سرې

«څو پسونه»

څه غريب، ستړي کاروان دی؟

باد راوړې پانې ريږدي.

۱۳۷۲ / ۷ / ۲۹

کابل

# سپوری ( ۲ )

ما خو ټول عمر له کوچینو سره مینه کړې

کوچي لوګي،

ګوچي بادونه،

ګوچې پیغلې،

او کوچې کېږدی،

ماخو ټول عمر له کوچیو سره مینه کړې.

***

کله چې باد

زما د کور پر رژېدلو او ختېینو بامو

د خپل ناپایه سفرونو منزلونه وهي

زه ترې مدام

د خپل ورک شوي سپوري

د ټوخي غبراورم.

کله چې

ما د شو ګیرو د تورو غرونو له شا

دخوب کوچې

زما د سترګو په رنې کېږدی راپېبنه وکړي

زه د کوچیو د کاروان

سیـــندونــه هم مـــري                                    اســــــحــــــاق نــــــګیـــــــال.

د هغه مست

خوددې سترګې اوښکې

دغاړې له زنګونو ځنې

دخپل ورک شوي سپوري

سترګی غزل اورم.

کله چې

د کوچۍ پېغلې درنګین وربل ماښام

او د کمځو د غځېدلو غرونو شپو ته ګورم

زه ترې مدام

دخپل ورک شوي سپوري

دپرهر جنو وینو

د شنوغوټیو شین سلام اورم.

کله چې

له سترګیوی منزلونو وروسته

د هغو دنګو غرو تر غاړو

دوړو وړو وریو

دخنداوو تمځایونه ګورم

چې ورته لېو کې اوبه ور کوي

او له شنو سترګو یې سترګیاوې مینځي

ما خوټولو عمر له کوچیو سره مینه کړې.

***

ای د بې ننبو

او بې کوره شنو بادونو پـه خیر

زموږ د کوچیو

لالهاند کاروانه !

ای ددې دنګو دنګو غرونو

او دلوښو دښتو

پر سپینو سپینو او سپېڅلو پیو

رالویې شوې شوې کوچۍ !

ای ددې غرونو د ځیړیو

او چندړو د باغونو

پر لندو لښتو ویده کوچیه !

او ای ذغرونو دشپو نکیو

د شپېلیو پر وزرونو کې

راتاوې کېږدئ !

سپوری مې بیرته راکړئ !

زه مې یوازې دغم غر

او د خنداووجنازې

پرخپلو سترو

او بې کسو اوږو نه شم وړلای

سپوری مې بیرته راکړئ !.

زه پر دې ارتې او پراخې نړۍ

ایکې یوازې

همدا سیوری لرم

سیوری مې بېرته راکړئ !

***

ما خو تول عمر له کوچیو سره مینه کړې

کوچې لوګې،

کوچې بادونه،

کوچې پېغلې،

او کوچې کېږدۍ

ماخو ټول عمر له کوچیو سره مینه کړې.

۱۳۷۲/۸/۲۶

لغمان

میرمنې ته مې لیک

# کورمې

شپې شي، شپې ومري

او دورځو او ښې بیا وزېږي، بیا قتلې شي

خو زه ژوندی یمه د شپو، ورځو د قتل انتظار ته ناست یم

ویې ځښم، ویې خورم،

ګړې، ګړې ویده پاتې شم، بیا پا حیږم

پورته شم، بیا یې وځښم، بیا یې وخورم، بیا ویده شم

شپې شي،

شپې ومري،

او دورځو اوښې بیا وزیږي

بیا قتلې شي.

***

زما د ځنګې یخ وهلي ګلان لاړل

چې د ښکلي مشرق زلفو نه

په ځنو کې د لمر ښکلي ګلونه کیږدي

او زه یوازې د پنجرې په ځنګ کې ناست یم

له خپل ځانه سره «ګاتې» کوم

کله نا ځکو ته لمنې اوبم

کله انګړ کې له خپل سېوري سره پاڅم په «موسیو» سرشم

خود «موسیو» چم مې هم نه دی زده

کله د خدای له وېرې پاڅم

ستا لمن مخې ته واچوم په لمونځ و کوم

ستړی ستومان شم پر لمونځونو

خو لمانځه نه وروسته

خولې ته دوعانه راځې

خدای ته دعا هم پښتنې ژبې ته سوال ښکاري

او زه د سوال او د سوالګر له نامه کرکه لرم.

شپې شي،

شپې ومري،

او دورځو اوښې بیا وزېږي

بیا قتلې شي.

***

زما د کور ښاپیرۍ تللې مالت د کوه قاف په سفر

نورمې د کور له دېوالونو ته

د عطرو ګلان نه وریږي

هر شیبه

د سرو ګلونو د غوټیو د عطرونو پر ځای

دورور د چرسو او د شنو بنګو دودونه څښمه

څوک د ډوډۍ پر سرلګیادی

نا مینځلی لاس ګولۍ تاووي

بل د بوبل د خولې مړۍ شماري

بل پخلنځی د شنو نسوارو پر شنو لاړو ډک کړ

نور ددې کور دعا دتونو په ښیښه کې خپل مخ نه شم لیدای

ښاپیرۍ ببرته راشه !

ګلونو راشئ،

زما تشه ځانګه بیا ډکه کړئ !

۱۳۷۲ / ۱۰ / ۳

کابل

## غر(۱ )

منم چې وطن وران شو مګر وران نه شو داغر

آسمان يې په سر کېوت خو ستومان نه شو داغر

حاجت څه د بيړۍ شته دامې کلې دامې کور

خبر دې چې ترته نو حه په توپان نه شو داغر

هر ګاني يې رهبر دی هر پرخه يې قيام

بې توري بې شملې نه شو حيران نه شو داغر

وربږي دې اورونه پرې داغاړه دايې سر

سو زبږي خوله هوډه پښېمان نه شو داغر

قربان يې شم له ضده چې يې هېڅ نکړو بدل

هماسې چې افغان وبل افغان نه شو داغر

۱۳۷۲ / ۱۲ / ۳

لغمان

# رحمان

وچې خاورې نه بهر شو

هومره لوی شو لکه غر

هغه رونډ سترګې پيدا کړې

هغه ګونګ شو ژبور

په بې پوندو پښو ګرځي

داسپوږمۍ ده که دا لمر

لو به ځمکه يې پيدا کړه

هسک په تله برابر

داشنې ونې دي که څانګې

ورته ټولو ايښې سر

هر څه پړ مخې پۍاته دي يادوي نو د رحمان

تاته چاوې چې درواغ دي نعمتونه د سبحان

ځوک يې جوړ کړله کودړي

ځوک يې پاځوه له اوره

څه خوږې، تروې اوبه دي

ځي بهېږي لورتر لوره

تکه شنه هره دانه ده

هره ونه يې سمسوره

لکه غرونه بېړۍ ګانې

په دا شنه درياب کې ګوره

ځوک پيدا کړي ځوک فنا کړي

ځوک تر کوره ځوک تر ګوره

يا خو وباسي له سينده مرغلرې او مرجان

تاته چاوې چې دروا غ دي نعمتونه د سبحان؟

***

وخت د تلې رانږدې دی

نه بقا شته نه مهلت شته

که پيری دی که انسان دی

نه يې زور نه يې همت شته

بې لوګيو سرې لمبې دي

نه آرام شته نه راحت شته

دا اسمان به چوي له وېرې

دا سې غم دا سې هيبت شته

له آسمان او ځمکې ووځه

که دې توان که دې طاقت شته

چې کړل دې اوس بې رېبه داده ورځ دامتحان

تاته چاوې چې دروا غ دي نعمتونه د سبحان؟

دا شعر له سوره رحمان څخه په الهام ويل شوی دی.

۱۴ / ۱۲ / ۱۳۷۲

لغمان

# سپند

پیړۍ یې تېرې شوې هوښیار نه شو

چا وې د کلي سپند مهار نه شو؟

زه به رسوا کړم بې ننګي د څپو

که جاله وان راته په قار نه شو.

۱۳۷۳ / ۱ / ۶

کابل – ماهیپر

# کرونده

ځمکه هېڅکله د سينې د سر شين شوی نازولی زړی نه هېروي

زړی هم مور غواړي.

***

باد ددې غره له تالا شوي کلي راغی

زمور د ښکلې کروندې په په سپينو تيو کې يې پی. وچې کړې

زړي له لوږې مړه شول

او زه تنها پاتې شوم

د کروندې پر وچو تيو د ماشومو شهيدانو سرې جنډې شنې شوې

کرونده بوره شوله

کرونده زړه پر شاپرته ده

د آسمان د مور پر سپينو نازولو بچو ناړې شيندي

کرونده بادونه داد خيرې لمن پور غواړي.

***

کرونده ژاړي راته چيغې وهي

زويه ! فيره او ناکامه شومه

سبا به سره اورونه مړه وي

او د کلي دغه سوړ تنور به ژاړي

او له لوږې به مري

سيـندونـه هم مــري



اســــحـــــاق نــــگيــــــــال.

لاړشه ! دبلې کروندې دسینې زُړی شه او وغوړیږه

زه به دې هیله مور شم

چې هابزګره او نهره پښغله راشي راته وخاندي

او ووايې چې ای موري !

دادی نن بیا مړه شوم

وچه ډوډۍ مې بیا له لاړو سره تیږه کړله.

***

تنور لګیادی رانه اور غواړي.

۱۳۷۳ ۲/ ۱۵

کابل

# کچل

یو سړی نوم یې حسن د کونډې زوی و
د کچل په نوم مشهور پر کلي، کوی و
پېدا کړی رب تنبل او هم بېکار و
همېشه به دی د مور پر اوږو بار و
یوه ورځ یې ابۍ وېوسته له کوره
څه په چل، څه په تدبیر او څه په زوره
کچل لاړه له خپل ښار ځني بهر شو
تر هغو چې پر یوې دښتې برابر شو
خوار او ستړی یوې ونې ته دمه شو
چې له لرې یوټولي ورته ښکاره شو
یو هجوم و چې پرې راغې د مچانو
سره جګړه وه چې پرې جوړه شوه یارانو
کچل دم ساعت پر ټولو بریالی شو
له غروره هسې مست لکه زمری شو
بیا یې ولیکل پر غټو تورو باندې
چې ویده و د هغې ونې د لاندې:
«شل مې مړه، سل مې زخمي، سل مې آزاد کړل
دښمنان مې پر یوه ګوزار برباد کړل»

په دې وخت کې یو لښکر چې د سطان و
پر همدې لاره په کوم مقصد روان و

دوی لیدل چې یو سړی دلته ویده دی
او تر پاسه یې یو لیک په رپېده دی

لیک یې ولوسته لښکر ورته حیران دی
وې یې دا دی چې رښتیني قهرمان دی

لښکر وخوځېد په منډو خپل سلطان ته
وې یې راشه شاها ! ګوره پهلوان ته

سل آزاد ، سل یې زخمي، سل یې وژلي
اتلان نشته تر ده چې موږ لیدلي

ددې شاه چې له بل شاه سره جګړه وه
دبري او ماتې وېره ورسره وه

پر لیدو ددغه ځوان هومره خوشحال شو
ته به وا چې دبري یې شین نهال شو

حسن راغی ددربار دغاړې ګل شو
د عیشونو تود باران وربانـدې تَل شو

بله ورځ هغه د جنګ چغه خپره شوه
اول ټولو نه حسن باندې ناره شوه

د جګړې کالي یې واغوستل کچل ته
اوس یې بیا یې دمیړانې تود مورچل ته

وې یــــې زیـــــن کـــړه هــغــه آس چې دې خوښـــېـــږي

مېـــړنــي پـــر مېـــړنـــو آســـو سپـــر ېـــږي

خـــو کـــچـــل چـــې لا د خـــر ه سپرلي یې نه زده

د جګــــړو پر مـــېـــړنـــو آســـو یـــې څـــه زده ؟

کـــچـــل هــغــه آس راخـــلاص کـــړ له رســـۍ نه

چـــې بـــې زار ولـــه ازلـــه زنـــدګـــۍ نـــه

هـــغـــه اس چـــې نـــه مـــردارو ، نـــه ژونـــدی و

پـــرې سپـــور شوی د سلطـــان دا مـــیـــړنـــی وه

ټـــولـــو ووی پـــه رښتـــیـــا چـــې قـــهرمان دی

پرهـــمـــدې اس د جـــګـــړې پـــر لـــــور روان دی

کـــچـــل ووې اوس مـــــې وتـــړئ پـــر پـــړي

چې چـار پـیـــر مـــې شـــي تـــر آس د بـــدن غـــړي

د کـــچـــل خـــو داکـــارونـــــه و لـــــــه ډاره

چـــې ګـــوزار یـــې تـــه کـــړي آس پـــه ســـمـــه لاره

خـــو پـــادشـــاه وې چـــې داکـــار دی دنـــرانـــو

نـــه ویـــریـــږي پـــــه تـــش لاس لـــه د ښـمـنـانـو

کـــچـــل لاره د جـــګـــــړې پـــه لـــــور روان شـــو

ســـر لـښـکـری ګـډ د رزم پـــه مـــیـــدان شـــو

چـــې یـــې ولـیـــد د دښـمـــــن دلـښـکـر ســـیـوری

هـــلـــتـــه جـــوړ شـــو لـــه کـچـــــل څـنـې کـربـــوړی



ســیـنـدونـه هم مـــري                    اســــحـــــاق نـــګـیـــــال .

دی روان شو چې ترمځې یې شوه ونه
هغه ونه چې له بیخه وه چینجنه
بیا له ویرې یې ترې غېږه کړه چارپېره
ونه ووته له خاورې نه ترزیره
پرآس سپور، ونه په لاسو کې کچل
ښکاریده هغو دښمنو ته اجل
دښمنانو چې یې نوم و اوریدلی
خو په سترګو یې هرګز نه ولیدلی
وې ترلی پرآس سپور پر موږ روان دی
ونه باسي په لاسونو داڅه ځوان دی
موږه نه یو پر رښتیا دده د زور
داسې بریښي لکه تندر، لکه اور
دښمنانو دجګړې له لوري شا کړه
فتحه داسې رب پر برخه دپادشاه کړه
پادشاه وویل کچل ته پهلوانه
مبارک شه لور مې درکړه درته ځوانه
بیا کچل سره له ناوې راغی کورته
شهزادګۍ یې کړه نوکره خپلې مورته
اوس میړه دمیړنیو حسن خان دی
هم باتور دی، هم اتل دی، هم ښه ځوان دی.

۱۹/ ۲/ ۱۳۷۳ کابل

عبدالله پویان ته !

# یورنګ ــ یوباد

زه د دردونو رسیدلې فصل

زه مې دځوانو ارمانونو شهید

زه مې د پیغلو سحرونو قاتل

زه مې د ستړیو منزلونو شهید.

***

زه له خپل ځانه ستړی شوی سیوری

زه له خپل ځانه ستړی شوی شاعر

زه هغه هیر ، هغه نیمګړی غزل

هغه له ستر ګو غورځیدلی شاعر.

***

زه رالویدلی د موسکا له غرونو

او راکې مړدی هسی سکور یمه زه

زړه کې هنداره د سبا قتله ده

لکه حباب هسې یو کور یمه زه.

***

زه ددی تورو شپو کیږدۍ ته ناست یم

مانه دورځو تاج محل هیر دی

زه دتیارو دږمو رنګ وهلی

مانه دسرو شونډو غزل هیر دی.

***

زه دابلیس ناوې په ښکار وړی یم

زه دبد رنګې دنیا اور کې سوځم

زما یې خوله دشپې پر تیو ایښې

زه دکمبختو ستورو کور کې سوځم.

***

زه ددې وریځو سمندر کې لاهو

او ته ساحل راته دلمر ښیې

زه دلو لیو شپو په غیږ کې ستړی

ته راته غیږه دسحر ښیې.

***

ما دزړو بګوو چیغې وژني

رانه پیښې څه دبلبلو غواړې

زه دبلا ژامو کې شپې تیروم

ته رانه عزم دخندلو غواړې.

***

زما يې چيغې پر زنځير تړلي

لکه فرهاد راته تيشې راکوي

رما يې شونډې په توبو ګنډلي

ته ګناه کار راته نشې راکوی.

***

ګوره زه مړ يم ته آيت د سبا

راځه راځه آشنا يه هير مې که

رنګ مې وانخلې له دې سوي درمند

باد يم راوړی په باد تبر مې که.

۲۸ / ۳ / ۱۳۷۳

کابل

# غر ( ۲ )

غر ځومره ښکلی دی؟

دتیږو دارام سین

دموسکا

ویښو ځپوکې ویده،

غر

ددې شګو په ټکریو کې

دلمر دسرو انګورو

دباران هادې.

***

غر ځومره ښکلی دی !

دلارې دکاروان

دتږیو اوښو

هر قدم کې

دشنو پر خو ګړی

غرمو دمینو کیسو

سمسوره ژبه

او دښکلو ښاپیریو

دکمځو دسرو ګلونو

سیـندونـه هم مـري



اســـــحـــــاق نــــګیــــــــال.

دباغچو مالي.

غر دښارونو

اوکوڅو

او دبامونو

له تورتمو زندانونو نه دوتبو

شنو بادونو

دسفر او آزاديو ډګر.

غر دهوسيو او بازانو

ددې ستړيو ستړيو منډو

او خوبونو

دغه ښکلی

زړه را ښکونکی انځور.

غر څومره ښکلی دی اشنا

دا څومره ښکلی دی غر !

۱۳۷۳ / ۵ / ۲۷

لغمان

# غزل او خنجر

یورونږ د سبـــا باد یــــم تکل شتـــه خــــو وزر نــــشتـــــه
دا څنګه پسرلې دی ؟ سحر شتـــه مـــازیـــګـــر نشتـــه

ای شپـــې ! تـــه دې له ستــــورو نـــه داوړی پـلو ډک کړه
زموږ دورځو برخـه کــې خو څـــا څـــکی دلـــمـــر نـشتـــه

جنډی نه شوې دیرو کې هغه شـــنــې دچـلـم وریـــځـــې
وطـــن مــــې دشـــمــلــو دی خــو یـــوه هم پر سر نشته

یـــو ګل چـیـــرتـــه کـمـڅو کې لکه ستوری زرغون نه شو
منګولې پر نکریزو او منـــګــــي پـــر ګـــودر نشـــتـــه

راشنه شوه پر ژبـــه دچـــا بـــیـــا مـــیـــونـــدي کـــړیـــکه
شـپیـلـــۍ پـــر کـــړو بـریـتـو ، یـو غـمـې پر خنجر نشته

ننـګیــــاله چې دې خواکې نه « خزان » شته نه « ټکور » شته
والله چې په دې ښــار کـــې غـــزل نشـــتـــه ، هنر نشـــتـــه .

۱۳ / ۶ / ۱۳۷۳

کابل

# کجاوې !

څوک دی ؟ دکوم ځای دی ؟ او چیرته درومي ؟

نه پوهېږم !

چې د سهار د شنو وږمو د شنې زېږ دا شیبه کې

د جامو غر په اوږو مات کړم

د شنه خوب د شنو اوبو په سین کې ولامبم او سترې شمه

دی شي نږدې

سپینې جامې راځنې وتښتوي.

او دغنمو پر وریښمینې وخېږي او چیغې کړي چې:

ای لامبو زنه،

اې دباغ مرغیو !

مادرته سرې ، تورې جامې راوړي

راشئ دا سپینې او خیرنې جامې وغورځوئ !

څه شپه وروسته وروسته د دې کلي د مرغیو

او کبانو جامې نوې شي

سین تور شي

ونې تورې

کلی سور

او کلی تور غوندې شي

سیـــندونـــه هم مـــري                                   اســــــحــــــاق نــــــګیـــــــــال.

بیا کجاوه پراوږو بار کړي

خدایزده چیر ته به ځي.

* * *

کله چې پاځم

هغه وینم چې روان دی

او ددښتو پر نوویو لارو منډې وهي

او کجاوه یې زما زما له تکو شنو خو بو ډکه ده

بیا دکوچیو دکاروان مخې ته تم شي

او هر خوب مې

موټی موټی پروریو او اوښانو ویشي

کجاوه بیا تشه شي

بیا درمو له مخې شنه وانبه راټول کړي

کجاوه له سره ډکه شي

موسکی شي

بیرته وخوځیږي

شپه شي ، تیاره شي

تورو وریځو سره یو ځای شي

باران شي

او له سترې کجاوې سره راوڅڅیږي

بیا دغنمو پر وریښمینو زلفو وخیږي

او چيږي کړي چې:

جامې مو سرې

جامې مو تورې ،

او خوبونه مو ژيړ !

داسې يو زيرې راته وکړي

او روان شي

خدای زده چيرې به ځي؟

۱۸ / ۶ / ۱۳۷۳

کابل

# چوپتیا

زما دکور څراغ ماښام نه تر سبا سوځي

او له ماښامه تر سبا.

دخپلې ښکلې تنهایۍ له تورو زلفو سره مینه کوم

مایې دزړه پر دښتې کور کړلی

مادچوپتیا له سپینو تیو نه

دژوند دچینې غړپ کړی دی.

* * *

زما دکور څراغ ماښام نه تر سبا سوځي

خوبه مې خیال

لکه یتیمې مرغلرې

دغزل له یا قوتي شونډو راونه څڅیږي

نور به دسترګو له هنداړو نه دخیال

او دغزل شنه انځورونه ټول کړم

نور مې دخیال واګې چو پتیا ته ښنم.

۲۴ / ۶ / ۱۳۷۳

کابل

دعبدالقهار عاصي پر شهادت

یون منصوره ويرنه:

# زه هم د رځم !

موږه چې سترګې غوړولي

او موږ چې دادی سترګې غوړوو

دمينې کيسه مو نه ده زده

موږ مينه نه پيژنو

وينه پيژنو

وينه او مړينه زموږ بر خليک دی

وينه او مړينه زموږ تاريخ دی.

*   *   *

موړ لا مینه نه ده لیدلې

مینه هغه کوچی باد دی چې پرغولي مو هیڅکله شین نه شو

موږ مینه نه پیژنو

زموږ نوم یې له وینې او مړینې سره تړلې دی

رښتیا ،

د « حسین » او « یزید » کیسه دې زده ده؟

پیړې پیړې کبړي چې

د « یزید » په لاس کې توره شته ده

یوه توره تُوره

یوه سره تُوره

هغه تُوره چې « حسین » پرې هره ورځ وژني

او د « حسین » پر مری یې راکاږي

مګر تا د «حسین» مړینه لیدلې ده ؟

مګر دا « یزید» نه دی چې هره ورځ مري؟

« مګر دا « حسین » نه دی چې هره ورځ زیږي؟ »

هو ،

مور مینه نه پیژنو

وینه پیژنو

وینه او مینه زمور بر خلیک دی

وینه او مړینه زمور تاریخ دی

ــ خو څرنګه برخلیک ؟

د «حسین» برخلیک !

خو څرنګه تاریخ؟

د «حسین» تاریخ !

رښتیا،

زمورنو م یې د «حسین» دنامه سره تړلې دی.

ای تاته وایم !

مور دې په یاد یو ؟

زمور جنګړې دې په زړه دي؟

او کله دې زمور په جونګړو

هغه بې پیبرې لوګي نه دي هیر؟

هلته چې خاوره يو ازې يو ه ولو يشت ده

نيم يې زندان دی

او نيمه يې هديره

هغه زموږ کلی دی

او هلته زموږ جونګړې شنې دي

هلته چې دنغريو پر سرونو

لوګي له لوږې مري

او اوبه له تندې جل وهي

هلته زموږ کلی دی

زه او ته هلته پيدا يو

زموږ دکلي لاره پرګلونونه

پر اغزيو ده

پر دغو لارو زموږ ييلې او تناکې پيښې

پر لوټو

پر کاڼو لګي

زموږ لارې قاتلې دي

زموږ لاروي قاتلان دي

دغه سترې او قاتلې لارې

زموږ سترېو کاروانونو ته

اوبه نه

وینې ورکوي

زموږ دسترېو آرمانونو وینې

هو کې !

موږ مینه نه پیژنو

وینه پیژنو

وینه او مړینه زموږ برخلیک دی

وینه او مړینه زموږ تاریخ دی

رښتیا ،

کله دې دسیندونو مړینه لیدلې ده ؟

ګوره ! سیندونه هم مري

او زموږ نوم یې

دسیندونو له نامه سره هم تړلې دی.

